# زموږ عقيده او منهج

لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا




مؤسسة العزائم

العزائم خپرندويه اداره يې وړاندې کوي

# سرليکونه


١ د الله تعالی باره کې زمونږه عقیده ........................ 5

٢ د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باره کې زمونږ عقیده. ........................ 45

٣ د قرآن کریم باره کې زمونږ عقیده. ........................ 58

٤ احادیثو په باره کې زمونږ عقیده. ........................ 68

٥ د صحابه کرامو په باره کې زمونږ عقیده. ........................ 83

٦ د څلور امامانو باره کې زمونږ عقیده ........................ 98

٧ د مقلدینو په باره کې زمونږ عقیده ........................ 112

٨ د دین د نورو امامانو، فقهاؤ او محدثنو باره کې زمونږ عقیده ........................ 126

٩ د موجوده حکومتونو په باره کې زمونږ عقیده ........................ 133

١٠ د جهاد فی سبیل الله په باره کې زمونږ عقیده ........................ 151

١١ د روافضو په باره کې زمونږ عقیده ........................ 160

١٢ د پخو قبرونو او په هغې د جوړو شو منارو، ابادیو، مساجدو، لنګرونو وغیره باره کې زمونږ عقیده ........................ 176

١٣ د کلیسا او امام باړو د سیکانو د معبدونو د هندوانو د مندرونو او د ګرجو او د قبر پرستو صوفیانو د خانقاهونو په باره کې زمونږ عقیده. ........................ 179

د طاغوت پلوه درباري ملایانو او شیخانو په باره کې زمونږ عقیده ........................ 184

١٤ د سعودي د مشهورو شیخانو: ابن باز، عثیمین، الباني، صالح الفوزان باره کې زمونږ عقیده ........................ 194

١٥ د تصوف او د صوفیانو په باره کې زمونږ عقیده ........................ 199

١٦ د خلیفه او خلافت باره کې زمونږ عقیده ........................ 207

١٧ د کبیره ګناه مرتکب په باره کې زمونږ عقیده ........................ 223

١٨ د انتخاباتو او جمهوریت په باره کې زمونږ عقیده ........................ 239

# زموږ عقيده او منهج

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله محمد وعلى اله واصحابه وازواجه ومن والاه امابعد.

د الله سبحان وتعالى سنت كريمه دى چې كله او څه وخت هم د حق دين د ختمولو او يا يې هم د باطل سره د خلط والي او ګډوډ والي كوشش شوى نو رب د دې د ساتنې، دفاع او تجديد لپاره خلک پيدا كړي، د اسلام څخه مخكې دغه طريقه د انبياء عليهم السلام په رالیږلو سره كېده خو د اسلام د راتلو سره دغه وظيفه محمد رسول الله ﷺ، او بيا د هغه د وفات څخه بعد د هغه صحبح او ريښتوني امت ته وسپارل شوه چې عبارت دى: د صحابه كرامو او د هغوى د تابعينو او د اتباع تابعينو څخه، چې هغوى د دې دين په ساتنه او د دې د تحريف كوونكو او تأويل كوونكو داسې مخنيوى كړى چې نن زمونږ لپاره دغه محمود كردار يو رهنمايي او معيار ګرځېدلى دى، او همدا به په حق پرستو كې تر قيامته جاري وي.

دا د دې امت د لويو منقباتو څخه دى چې د دې د هر سل كالو په تېرېدو سره رب دېته يو مجدد ضرور وركوي چې هغه په دين كې د تحريف كوونكو، دغه ډؤل د تقصير كوونكو او زيادت كوونكو خرافات ختموي. (سنن أبى داود، نمبر: ۴۲۹۲ نمبر) او په (مستدرک د حاكم، نمبر:

٨٥٩٢) كې صحيح حديث موجود دی، رسول الله ﷺ فرمايي:

(إن الله يبعث لهذه الأمة على رأس كل مائة سـ نة من يجدد لها دينها).

**ژباړه:** بېشكه الله دې امت ته د هر سل كالو په سر كې داسې څوك راليږي چې هغه دې امت ته د دين تجديد كوي (يعنې چې كوم دين ورته راليږل شوی هماغه ورته ورپه ګوته كوي).

بيا په دې تاريخ د اسلام ګواه دی چې د اسلام حقيقي بچو اګر كه د دشمن په مقابل كې د عَدد او عُدد په اعتبار كم هم وي خو د خپل دغه سپېڅلي دين د دفاع او حمايت په پار هر وخت كې د هر ډګر د جنګ ميدان ته كوز شوي دي، بيا دا برابره خبره ده دغه جنګ د دليل او استنباط په ميدان كې وي او كه د تورو او د نېزو، خو حق پرستو په يو سنګر كې هم سرونه او مالونه په دې باندې د قربانۍ څخه نه دي ژغورلي، چې نن د دې جملې څخه د دې عزت ،شرف او كرامت بيرغ الله رب العالمين اسلامي دولت او خلافت أعزها الله واقامها ته په لاسو كې وركړی دی چې د دې دين د نصرت ،تجديد ، حمايت او تنفيذ لپاره جهاد كوونكي د اسلام دغه حقيقي بچي او د دوی دغه اسلامي او شرعي منهج د هرې لورې د داسې سختو شنكجو ،ګذارونو او حملو سره مخ دی چې داسې حملې او شكنجې كه ووايو چې ساری او مثال يې مخكې نه دی تېر شوی نو ان شاء الله چې دا به مبالغه نه وي چې په اسلام دې قسم

حملې هغه مسلمانان ډېر حیران کړي چې د علم نه محروم دي چې د چا ومني!؟

چا پسې لاړ شي او چا ته حق ووايي؟

د دې خطرناک جنګ په میدان کې هر صف ځان حق او په بل صف باندې د بطلان فتوې ورکوي، مقام د درد او تأسف همدا دی چې که دلته اصلي کافر د دې حملې څخه بیخي ووېستل شي او صرف هغه چې د اسلام دعوی کوونکي او ځان ته حق پرست وايي هغوی په دومره ډلو او صفونو تقسیم شوي چې د شمار څخه تقریبا وتو ته نږدې شوي دي، او هره ډله د (سُورَةُ المؤمنون: ۵۳) دې آیت کریمه مصداق ګرځېدلي چې الله متعال يې په حق کې فرمایلي:

﴿فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ﴾.

**ژباړه:** خو وروسته (چې دا یو دین او یو امت وو نو) خلکو دین په خپلو منځونو کې ټوټه ټوټه کړ؛ له هرې ډلې سره چې څه دي، هغوی په همغه خوشحاله دي!

بیا هرې ډلې د ملایانو او شیوخو په نومونو داسې اهل الزیغ بلاعمه کرايي ګر پیدا کړي چې د مذمومو تأویلونو، مردودو شبهاتو او معنوي تحریفاتو او حتی که ورته ممکن شي نو د لفظي تحریفاتو نه هم کرکه نه کوي، د دې هرې باطلې حربې څخه يې داسې جالونه خپاره کړي

چې ډېرى بې شمېره بې علمه ساده مسلمانان يې په يو او دوه کې حيران کړي دي.

دغه ډول يې د حق دين د دعوت کوونکو د دعوت په مخنيوى کې هم کافي اثر کړى، نو بناء على هذا د خپلو هغو مسلمانانو ورونو او خويندو د تنبيه او خبرداري په بناء چې هغوى ديني علوم نه لري او د حق او باطل ترمنځه ورته د تميز لارې ټولې بندې شوي او نه شي کولى په ممکنه طور سره د حق معرفت ترلاسه کړي او په حقيقي اسلام او حقيقي مسلمانانو د بدګمانۍ څخه راوګرځي، او د حق ملګري شي او خپل ځانونه او إيمانونه د خسارة الدنيا والآخرة څخه بچ کړي، نو غواړم چې دوى ته د اسلامي دولت او د هغې د مجاهدينو منهج ورته په اختصار سره مخ ته کېږدم، تر څو د هغو باطل پرستو په دروغو او تهمتونو اګاه شي چې هغوى د طواغيتو او کفارو سره د ولآء حمايت او دفاع له کبله په اسلامي دولت او د هغې په مجاهدينو، حاميانو او مناصرينو لګولي دي، په دې هدف چې عندالله زمونږ ذمه فارغه شي او دوى اينده په حق د باطل او په باطل د حق ګمان ونکړي.

﴿لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَن بَيِّنَةٍ وَيَحْيٰى مَنْ حَىَّ عَن بَيِّنَةٍ وَإِنَّ اللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾.

# د الله تعالى باره کې زموږ عقيده

## اوله عقيده:

موږ الله متعال د ذات او د جمله صفاتو په اعتبار سره يک تنها ګڼو په دې کې هېڅ قسم شريک او سيال نه لري نه په آسمانونو کې او نه په ځمکه کې.

په دې باندې قرآن کريم کې بې شمېره دلائل دي خو يو څو به اختصاراً ذکر کړو:

١ - په (سورة الاخلاص) کې الله تعالى فرمايي: ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ (1) اللَّهُ الصَّمَدُ (2) لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ (3) وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌ (4)﴾.

**ژباړه:** ورته ووايه (اى نبي) هغه (چې تاسې يې په اړه پوښتئ هغه) الله دى، يوازې يو دى؛ الله هېچا ته اړ نه دى او ټول هغه ته اړ دي؛ له چا نه پيدا شوى او نه له هغه نه څوک پيدا شوى دي، او نشته د هغه هېڅ همصفته هېڅوک.

٢ - په (سورة الاسراء: ١١١) کې الله تعالى فرمايي:

﴿وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٌ فِى الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ وَلِىٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا﴾.

**ژباړه:** او ورته ووايه ټوله ثناء او ستاينه د هغه الله لپاره ده چې هغه نه څوك په ځوى توب سره نيولى دى، نه په باچاهى کې څوك ورسره

شريك دي، او نه هغه بېوسى دى چې څوك د هغه ملاتړ وي. او بيان کړه لويي د هغه كامله لويي.

٣ - په (سورة الفرقان: ٢) کې الله متعال فرمايي:

﴿الَّذِى لَهُۥ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٌ فِى الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَىْءٍ فَقَدَّرَهُۥ تَقْدِيرًا﴾

**ژباړه:** (برکتونو والا) هغه ذات دى چې د آسمانونو او ځمکې د باچاهۍ څښتن دى، او څوك يې ځوى ندى نيولى او له هغه سره په باچاهۍ کې هېڅوك شريك نشته. هغه هماغه دى چې هر شى يې پيدا کړى، او بيا يې هغې ته اندازه مقرر کړې اندازه.

٤ - په (سورة يونس: ١٨) کې الله متعال فرمايي: ﴿وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَآءِ شُفَعَٰؤُنَا عِندَ اللَّهِ قُلْ أَتُنَبِّـُٔونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى السَّمٰوٰتِ وَلَا فِى الْأَرْضِ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾

ژباړه: او دا خلك له الله پرته د هغه څه عبادت کوي چې نه ورته ګټه رسواى شي او نه تاوان. او دوى وايي چې دا د الله په وړاندې زمونږ سپارښتګر دي (نو دوى ته) ووايه آيا تاسې الله له هغې خبرې څخه خبروئ چې هغه ته نه په آسمانونو کې معلوم دي او نه په ځمکه کې؟ الله له هغه شرك څخه چې دوى يې کوي پاك دى او لوړ او پورته دى.

## دوهمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې څنګـــه د الله ذات حقيقي دی مجازي، وهمي او خيالي  نه دی داسې يې صفات هم حقيقي دي مجازي، وهمي او خيالي نه دي، نو چې څنګه يې د ذات کيفيت مونږ ته نه دی معلوم داسې يې د صفاتو له کيفيت څخه هم علم نه لرو او د دې بحث او تفتيش حرام ګڼــو.

ځکه دا به هغه وخت ممکن وی چې والعياذ بالله تعالی دغه دوه خبرې موجودې وی:

- اولــه خـــبره: يا الله ﷻ مثل لرلی او حال دا چی مونږ ږومبی عقيده کې صراحت وکړ چې الله متعال هېڅ قسم مثل سيال او هم صفته نه لري، که څوک په دې قائل وي چې الله مثل لري  نو دا به نه وي مګر مشرک او کافر.

١ – دليل په دې د رب متعال دا کلام دی چې په (سُورَةُ الشّورىٰ: ١١) کې فرمايي: ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَىْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾.

ژباړه: نشته، په مثل د هغه هېڅ شی او هغه د هر څه اورېدونکی او ليدونکی دی.

٢ – ﴿هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ① اللَّهُ الصَّمَدُ ② لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ③ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌ ④﴾  (سورة الاخلاص)

ژباړه: ورته ووايه (ای نبي) هغه (چې تاسې يې په اړه پوښتئ هغه) الله دی، يواځې يو دی؛ الله هېچا ته اړ نه دی او ټول هغه ته اړ دي؛ نه له چا نه پيدا شوی او نه له هغه نه څوک پيدا شوی دی، او نشته د هغه هېڅ همصفته هېڅوک.

٣ - په (سور النساء: ١٧١) آيت کې الله متعال فرمايي: ﴿يَٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلْقٰهَآ إِلٰى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ فَـَٔامِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِۦ وَلَا تَقُولُوا ثَلٰثَةٌ انتَهُوا خَيْرًا لَّكُمْ إِنَّمَا اللَّهُ إِلٰهٌ وٰحِدٌ سُبْحٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ وَلَدٌ لَّهُۥ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَكَفٰى بِاللَّهِ وَكِيلًا﴾.

ژباړه: ای اهل کتابو! په خپل دين کې افراط مه کوئ او الله ته له حقه پرته بله هېڅ خبره مه منسوبوئ. مسيح عيسی (عليه السلام) د مريم ځوی له دې پرته چې د الله يو پيغمبر او يو فرمان ؤ، نور څه نه ؤ چې الله مريم ته ولېږه او د الله له لوري يو روح ؤ (چې د مريم په رحم کې يې د ماشوم بڼه غوره کړه). نو تاسې پر الله او د هغه پر پيغمبرانو ايمان راوړئ، او مه وايئ چې (الله) "درې" ګونی دی، منع شئ! همدا ستاسې لپاره ډېره ښه ده، الله يواځې همدا يو الله دی. هغه له دې څخه لوړ دی چې کوم څوک د هغه ځوی اوسي، د آسمانونو او ځمکې ټول شيان د هغه ملکيت دی او د هغو د ساتنې څارنې لپاره يواځې هماغه کافي دی.

- دوهمه خبره: او يا به هغه وخت دا ممكن وى چې د الله متعال باره کې د چا علم احاطه کولى شواى، او حال دا چې په چا د مخلوق تعريف صادقيږي هغه د دې څخه عاجز دى.

**دلائل په دې باندې دا دي:**

١ - الله رب العالمين په (سُورَةُ طٰه: ١١٠) کې فرمايي: ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِۦ عِلْمًا﴾.

ژباړه: الله، د خلکو په وړاندې وروسته ټول حال باندې علم لري او خلك نه شي راګېرولى هغه لره په علم کې.

٢ - په (سُورَةُ الأنعَام: ١٠٣) کې الله متعال فرمايي:

﴿لَّا تُدْرِكُهُ ٱلْأَبْصَٰرُ وَهُوَ يُدْرِكُ ٱلْأَبْصَٰرَ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلْخَبِيرُ﴾.

ژباړه: نه شي راګېرولى هغه (الله تعالى) لره سترګې (د مخلوقاتو) او هغه (الله تعالى) سترګې ګېرولى شي، هغه ډېر زيات باريك بين او باخبره دى.

## دريمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې الله ﷻ چې څومره صفات ځان ته ثابت کړي او يا د هغه نبي ﷺ هغه ته ثابت کړي دا د الله تبارك وتعالى صفات ګڼو دا چې څنګه د هغه تبارك وتعالى د ذات او شان سره لائق وي هماغه ډول ايمان وربانديې لرو کيفيت يې الله ته سپارو حقيقت يې منو او

تعطیل په کې حرام ګڼو، چې دا دېته ویلی شي چې د الله تعالی د ټولو او یا هم د بعضو صفاتو څخه انکار وکړی شي.

تشبیه هم په کې حرامه ګڼو، چې دا دېته ویلی شي چې په مخلوق کې د چا سره تشبیه ورکړی شي  په ټولو او یا هم په بعضو صفاتو کې.

تکییف هم په کې حرام ګڼو او دا دېته ویلی شي چې کیفیت یې بیان شي، لکه: داسې وویل شي والعیاذ بالله چې دغه فلانی صفت د الله داسې داسې دی.

په دې عقیده زمونږ دلایل هغه دا دی چې:

قرآن او سنت کې د الله متعال بې شماره ذاتي او فعلي صفات بیان شوي نه نبي کریم ﷺ او نه د هغه صحابه کرامو رضي الله عنهم د هغې د منلو څخه انکار کړی، نه یې ورته کیفیت بیان کړی، نه یې ورته د کوم مخلوق د صفت سره تشبیه ورکړې ده.

دې متعلق د یو څو أهل علمو أقوال د الفتوی الحمویة الکبری، باب أقوال الأئمة في صفات الله تعالی څخه ستاسو خدمت ته عرض کوم:

١ - الامام الأوزاعي رحمه الله:

موصوف فرمایي: «كنا والتابعون متوافرون نقول: إن الله تعالى ذكره فوق عرشه، ونؤمن بما وردت به السنة من صفاته.

ژباړه: مونږ او تابعين ټول په دې باندې معتقد يو دا وايو چې بېشکه الله چې لوړ دی يا هغه د عرش دپاسه دی او مونږ ايمان لرو په هر هغه څه چې سنت (احاديثو) وربانديې راتلل کړي د صفاتو د الله متعال څخه.

٢ - الإمام مالك.

٣ - الإمام سفيان الثوري.

٤ -الإمام الليث بن سعد رحمهم الله.

وليد بن مسلم رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي: «سألت مالك بن أنس، وسفيان الثوري، والليث بن سعد، والأوزاعي عن الأخبار التي جاءت في الصفات؟ فقالوا: أمروها كما جاءت. وفي رواية: فقالوا: أمرها كما جاءت بلا كيف.

ژباړه: ما له مالك بن أنس، وسفيان الثوري،ليث بن سعد، او اوزاعي څخه د هغو احاديثو باره کې پوښتنه وکړه کوم چې د (الله د) صفاتو متعلق راغلي نو هغوی راته وويلې دا داسې وګرځوه لکه څنګه چې راغلي، او په بل روايت کې داسې دي چې هغوی وويل: دا داسې وګرځوه لکه څنګه چې راغلي بغير د کيفيت (بيانولو) څخه.

## څلورمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې الله رب كريم د خپل ذات جلال او شان سره لائق ذاتي او فعلي صفات لري چې هر صفت د هغه په حقيقت باندې مبنى دى هېڅ قسم مجاز او تأويل ته په كې ضرورت نشته، چې يو څو له هغه

څخه په لاندې ډول دي:

- **النفس:** الله متعال نفس لري څنګه چې د هغه د شان سره موافق او مناسب وي.

**دلائل وربانديې دا دي:**

١ – په (سورة المائدة: ١١٦) كې الله متعال فرمايي: ﴿... تَعْلَمُ مَا فِى نَفْسِى وَلَآ أَعْلَمُ مَا فِى نَفْسِكَ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّٰمُ الْغُيُوبِ﴾.

ژباړه: ته پوهېږې (اى الله) پر هغه څه چې زما په زړه كې دي او زه پر هغه څه نه پوهېږم چې ستا په نفس كې دي. ته خو پر ټولو پټو حقايقو عالم يې.

٢ – په (سورة طه: ٤١) كې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِى﴾.

ژباړه: ما ته د خپل نفس (ځان) لپاره غوره كړى يې.

٣ – په (سورة ال عمران: ٣٠) كې الله تعالى فرمايي: ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُۥ وَاللَّهُ رَءُوفٌۢ بِالْعِبَادِ﴾.

ژباړه: او الله تاسې له خپله ځانه وېروي او الله په خپلو بندګانو ډېر زيات شفقت كوونكى دى.

۴ - (سورة الأنعام: ۵۴): ﴿وَإِذَا جَآءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا فَقُلْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾.

ژباړه: كله چې تا ته هغه خلك راشي چې زمونږ پر آيتونو ايمان لرونكي دي، نو هغوى ته ووايه: "پر تاسې دې سلام وي او ليكلى ستاسو رب په خپل ځان باندې رحمت (ستاسو لپاره)...

- **الــيدين:** الله سبحانه وتعالى دوه لاسونه لري او دواړه لاسونه د هغه ښي لاسونه دي.

**دلائل ورباندې دا دي:**

۱ - په (سورة المائدة: ۶۴) كې الله متعال فرمايي:

﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ﴾.

ژباړه: يهوديان وايي: د الله لاس تړل شوى دى، وتړل شول د دوى لاسونه. او پر دوى لعنت ووربېده، د دې بې ځايه او ناوړه وينا په اساس چې دوى يې كوي. د الله لاسونه ازاد دي، څنګه يې چې خوښه شي.

۲ - عبد الله بن عمرو ﵁ فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: «إن المقسطين عند الله على منابر من نور، عن يمين الرحمن ﷻ، وكلتا يديه يمين، الذين

يعدلون في حكمهم وأهليهم وما ولوا.

**ژباړه:** بېشکه عدل کوونکي به د الله په نزد د نور په ممبرونو باندې د رحمان ذات ښي طرف ته وي او دواړه لاسونه د هغه ښي لاسونه دي دا هغه خلک دي چې عدل کوي په فيصلو کې، او په خپل أهل کې، او په هغو کې چې دوی ته نزدې وي (صحيح مسلم باب فضيلة الإمام العادل .... رقم الحديث: ١٨٢٧).

- **اصابع انامل**: دا چې کله الله تبارك وتعالى لاس ثابت شو نو دغه ډول په احاديثو کې هغه ته ګوتې هم ثابتې دي الله متعال د خپل شان او جلال سره لايق ګوتې لري.

**دلايل وربandې دا دي:**

١ - عن عبد الله رضي الله عنه، قال: جاء حبر من الأحبار إلى رسول الله ﷺ فقال: يا محمد إنا نجد: أن الله يجعل السموات على إصبع والأرضين على إصبع، والشجر على إصبع، والماء والثرى على إصبع، وسائر الخلائق على إصبع، فيقول أنا الملك، فضحك النبي ﷺ حتى بدت نواجذه تصديقا لقول الحبر، ثم قرأ رسول الله ﷺ : {وما قدروا الله حق قدره، والأرض جميعا قبضته يوم القيامة، والسموات مطويات بيمينه، سبحانه وتعالى عما يشركون}.

**ژباړه:** د يهودو يو عالم رسول الله ﷺ ته راغی او ويې فرمايل: ای محمده مونږ (په تورات کې) دا مونده کوو چې الله به آسمانونه په يوه ګوته کېږدي او ځمکې به په بله ګوته کېږدي او اونې به په بله ګوته کېږدي اوبه او لمده بله به په بله ګوته کېږدي او نور ټول مخلوقات به په بله ګوته کېږدي او او وبه وايي: چې زه بادشاه يم، نو نبي ﷺ وخندل ترديې چې دننه غاښونه يې ښکاره شو د وجې د تصديق (ريښتيا ګڼلو نه) د خبر د خبرې، بيا رسول الله ﷺ دا آيت كريمه ولوسته: (ژباړه: او دوی احترام نه دی کړی د الله لائق احترام) (صحيح البخاري باب قوله: {وما قدروا الله حق قدره} رقم الحديث: ۴۸۱۱، وباب قول الله تعالي "لما خلقت بيدي" رقم الحديث: ۷۴۱۴، صحيح مسلم كتاب صفة القيامة والجنة والنار، رقم الحديث: ۲۷۸۶).

- **تـــكلـــم:** دغه ډول بل صفت د الله تعالی دا دی چې: هغه خبرې کوي او خبرې يې حقيقي خبرې دي څنګه چې د هغه د شان سره لائق خبرې دي.

دليل په دې باندې ټول قرآن او هغه احاديث چې هغې کې رسول الله ﷺ قال الله تعالی فرمايلي دي، خو بيا هم که څوک مزيد صراحت غواړي نو هغه دا دی:

١ - په (سورة البقرة: ٢٥٣) کې الله متعال فرمايي:

﴿تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ اللَّهُ﴾.

ژباړه: دې پیغمبرانو ته (چې زمونږ له لورې د انسانانو د هدايت وظيفه ورسپارلی شوېده) مونږ يو ته پر بل باندې لوړتيا او فضيلت وربخښلی دی. له دوی څخه ځيني داسې ول چې الله په خپله خبرې ورسره کړيدي.

٢ - په (سورة النساء: ١٦٤) الله متعال فرمايي: ﴿وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَٰهُمْ عَلَيْكَ مِن قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾.

ژباړه: او مونږ پر هغو پيغمبرانو هم وحې نازله کړې چې د هغو يادونه مو له دې څخه مخکې تا ته کړېده، او پر هغو پيغمبرانو هم چې د هغو يادونه مو تاته نه ده کړې، الله له موسیﷺ سره خبرې کړيدي په خبرو کولو سره.

٣ - په (سورة الأعراف: ١٤٣) کې الله متعال فرمايي:

﴿وَلَمَّا جَآءَ مُوسَىٰ لِمِيقَٰتِنَا وَكَلَّمَهُۥ رَبُّهُۥ﴾.

ژباړه: او کله چې هغه زمونږ په ټاکلې نيټه راورسيد او د هغه رب ورسره خبرې وکړې.

- **قـــدم:** الله تبارک وتعالی قدم (پښه) هم لري د دې اثبات هم په
- صحيح احاديثو کې رسول الله ﷺ هغه ته کړی دی.

**دلائل وربانديې دا دي:**

١ - عن أنس رضي الله عنه، عن النبي ﷺ قال: " يلقى في النار وتقول: هل من مزيد، حتى يضع قدمه، فتقول قط قط.

ژباړه: په اور کې به (خلک) ورغورځولی شي او جهنم به وايي چې نور زيات نشته؟ تردې چې الله به خپل قدم وربانديې کېږدي نو جهنم به ووايي قط قط (يعني د ډکوالي له وجې به اولتي وکړي)(صحيح البخاري ، رقم الحديث: ٤٨٤٨ -٤٨٤٩- ٤٨٥٠).

٢ - او د صحيح مسلم روايت کې الفاظ داسې دي: حتى يضع الله، تبارك وتعالى، رجله، تقول: قط قط قط، فهنالك تمتلئ، ويزوى بعضها إلى بعض.

ژباړه: (جهنم به نور خلک غواړي) تردې چې الله عزوجل خپله پښه وربانديې کېږدي نو جهنم به قط قط ووايي نو دغه وخت به جهنم ډک شي او ځنډې به يې خپلو کې راچيتې شي. (رقم الحديث: ٤٨٤٦ -٢٨٤٨)

٣ - (التوحيد لابن خزيمه باب: ذكر إثبات الرجل لله عز وجل وإن رغمت أنوف المعطلة الجهمية، رقم الحديث: ٢٠٨)

- **حـــب:** محبت  هم د الله تعالى صفت دی هغه محبت کوي د بنده کانو سره.

**دلائل په دې باندې دا دي:**

١ – په (سورة البقرة: ٢٢٢) کې الله متعال فرمايي:

{إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّبِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ}.

**ژباړه:** بېشکه الله محبت کوي د توبه ويستونکو سره او محبت کوي پاکانو سره.

٢ – په (سورة آل عمران: ٣١) کې فرمايي: {قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِى يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ}.

**ژباړه:** خلکو ته ووايه (ای نبي) که تاسې په رښتيا له الله سره مينه لرئ، نو زما د پيروی لاره غوره کړئ؛ الله به ستاسې سره مينه وکړي او ستاسې خطاوې به در وبخښي. هغه ډېر ښه بخښونکی او د رحمت څښتن دی.

٣ – په(سورة المائدة: ١٣) کې الله ﷻفرمايي: {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ}.

ژباړه: بېشکه الله محبت کوي د نېکي کوونکو سره.

٤ – په (٤٢) نمبر آيت کې فرمايي: {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ}.

ژباړه: بېشکه الله محبت کوي د عدالت کوونکو سره.

٥ – په (٥٤) نمبر آيت کې فرمايي:

{فَسَوْفَ يَأْتِى اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ}.

**ژباړه:** پس زر دى چې الله به نور ډېر داسې خلك پيدا كړي چې الله د هغوى سره محبت كوي او هغوى د الله سره محبت كوي.

۶ - په (۹۳) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي: {وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ}.

**ژباړه:** او الله محبت كوي د نېكي كوونكو سره.

۷ - په (سورة التوبة: ۴) كې الله متعال فرمايي: {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ}.

**ژباړه:** بېشكه الله د پرهېزګارانو سره محبت كوي.

۸ - په (۷) نمبر آيت كې فرمايي: {انَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ}.

ژباړه: بېشكه الله د پرهېزګارانو سره محبت كوي.

۹ - په (۱۰۸) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي: {وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ}.

**ژباړه:** او الله پاكي كوونكو سره محبت كوي.

۱۰ - په (سورة الحجرات: ۹) كې الله متعال فرمايي:

{إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ}.

**ژباړه:** بېشكه الله محبت كوي د عدالت كوونكو سره.

- **الـغـضــب:** الله تعالى غضب كوي ځكه غضب هم د الله صفت دى په نافرمانو بنده ګانو غضب كوي.

**دلائل وربانديې دا دي:**

۱ - په (سورة البقرة: ۶۱) كې الله متعال فرمايي:

{وَبَآءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِـَٔايٰتِ اللَّهِ}.

**ژباړه:** او دوی اخته شو په غضب د الله له طرف نه دا ځکه چې دوی د الله په آیتونو کفر کولو.

٢ - په (سورة ال عمران: ١١٢) کې الله متعال فرمايي: {وَبَآءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ اللَّهِ}.

ژباړه: او دوی ککړ شو په غضب د الله له طرف نه او ووهل شوه به دوی باندې ابدي محتاجي دا ځکه چې دوی وو چې کفر کولو په آیتونو د الله.

٣ - په (سورة النساء: ٩٣) کې الله متعال فرمايي:

{وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُۥ جَهَنَّمُ خَٰلِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُۥ وَأَعَدَّ لَهُۥ عَذَابًا عَظِيمًا}.

ژباړه: او څوك چې کوم مؤمن په قصد ووژني، نو د هغه سزا جهنم دی چې په هغه کې به د تل لپاره استوګن وي، پر هغه د الله غضب او لعنت دی او الله د هغه لپاره لوی عذاب تیار کړی دی.

٤ - په (سورة المائده: ٦٠) کې الله متعال فرمايي:

{من لعنه الله وَغَضِبَ عَلَيْهِ}.

ژباړه: هغه کسان دي چې الله وربانديې لعنت کړی دی، او غضب يې وربانديې کړی دی.

٥ - په (سورة النور: ٩) کې الله متعال فرمايي:

{وَالْخَمِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَآ إِن كَانَ مِنَ الصَّدِقِينَ}.

ژباړه: او په پنځم ځل کې ووايي چې پر هغې باندې دې د الله غضب وي، که هغه (يعني ميړه يې) (په خپل تور ويلو کې) رښتينى وي.

او دغه ډول نورهم په بې شمېره آيتونو او احاديثو کې د دې اثبات شوى دى .مزيد دلائل په دې باندې وګورئ:

۶ -(سنن الدارمي، باب: في الغيرة، حديث رقم: ۲۲۷۲.)

۷ -(سنن ابى داود، باب: في الخيلاء في الحرب، رقم الحديث: ۲۶۵۹)

- **الــرضـــاء:** دغه ډول رضا هم د الله متعال صفت دى الله متعال رضا لري او حقيقي رضا لري چې کيفيت يې الله ته سپارو او په ظاهر يې ايمان لرو.

**دلائل ورباندې دا دي:**

۱ - په (سورة المائدة: ۳) کې الله متعال فرمايي:

{الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِى وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَٰمَ دِينًا}.

ژباړه: نن ورځ ما تاسو ته ستاسو دين مكمل كړ او پر تاسو مې خپل نعمت پوره كړ او تاسو ته راضي شوم په اسلام باندې د دين په اعتبار سره.

۲ - په (۱۱۹) نمبر آيت کې الله متعال فرمايي:

{رَّضِىَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ}.

ژباړه: الله له هغو څخه راضي شو او هغوی له الله څخه راضي شول، همدا لويه کاميابي ده.

٣ - په (سورة التوبة: ١٠٠) کې الله متعال فرمايي:

{وَالسَّبِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَجِرِينَ وَالْأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَنٍ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّتٍ تَجْرِى تَحْتَهَا الْأَنْهَرُ خَلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ}.

ژباړه: او هغه مهاجرين او انصار چې تر ټولو د مخه د ايمان بلنې ته په لبيك ويلو کې وړاندې شول، دغه راز هغه کسان چې وروسته له نېکۍ او رښتينولۍ سره په هغو پسې راغلل؛ الله له هغو څخه راضي شو او هغوی د الله څخه راضي شول،او الله د هغو لپاره داسې باغونه (جنتونه) تيار کړيدي، چې لاندې به يې ويالې بهيږي او هغوی به پکې د تل لپاره اوسيږي، همدا ډېره لويه کاميابي ده.

٤ - په (سورة طه: ١٠٩) کې الله متعال فرمايي:

{يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ الشَّفَعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا}.

ژباړه: او په دغه ورځ به شفاعت په درد نه خوري، مګر دا چې چا ته الرحمان د هغه اجازه ورکړې او د هغه د خبرې په اورېدلو راضي شي.

٥ - په (سورة البينة: ٨) کې الله متعال فرمايي: {جَزَآؤُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَرُ خَلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ

ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ}.

ژباړه: د هغو بدله د هغو د رب په وړاندې په تلپاتې جنتونو کې اوسېدل دي، د هغو (جنتونو) لاندې به ويالې بهېږي، په هغو کې به د تل لپاره ژوند کوي، الله تعالیٰ له هغو څخه راضي شوی او هغوی له الله څخه راضي شوي دي، دا ټول د هغه چا لپاره دي چې د خپل رب څخه يې وېره کړي وي.

۶ - په (سورة المجادلة: ۲۲) کې الله متعال فرمايي:

{رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ}.

**ژباړه:** الله له دوی څخه راضي شو او دوی له الله څخه راضي شول، دوی د الله د ګوند خلک دي، خبر دار اوسئ! همدا د الله د ګوند کسان بري موندونکي دي!

۷ - په (سورة الفتح: ۱۸) کې الله متعال فرمايي:

{لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَٰبَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا}.

**ژباړه:** په يقيني ډول الله له مؤمنانو څخه راضي شو، کله چې هغوی له ونې لاندې ستا سره بيعت کاوه، د هغو د زړونو حال هغه ته معلوم دی، لدې امله يې پر هغو ډاډينه نازله کړه او هغو ته يې په انعام کې نږدې

برى (فتح) ورکړه.

- **الـضـحــك:** الله تبارك وتعالى د خندا صفت هم لري خندا کوي او دا يې حقيقي صفت دی.

**دلائل وربانديې دا دي:**

١ - عن أبي هريرة أن الناس قالوا ... فيقول: أي رب، لا أكونن أشقى خلقك فلا يزال يدعو حتى يضحك الله منه، فإذا ضحك منه، قال له: ادخل الجنة.

**ژباړه:** نو دا کس به ووايي ای ربه زه دې ستا په مخلوقاتو کې بدبخت ونه ګرځم نو تل به دعاء کوي تردې چې الله به وخاندي د ده دعاء څخه پس چې کله وخانديې په ده بانديې نو ده ته به ووايي چې جنت ته ننوځه.

(صحيح البخاري باب: قول الله تعالى: {وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة} رقم الحديث: ٧٤٣٧).

٢ - (باب: الكافر يقتل المسلم،.... رقم الحديث: ٢٨٢٦)

٣ - (باب: فضل السجود، رقم الحديث: ٨٠٦)

٤ - او صحيح مسلم باب: معرفة طريق الرؤية رقم الحديث: ٢٩٩؛ باب: بيان الرجلين يقتل.... رقم الحديث: ١٢٨، و كذا: ١٢٩،

٥ - وعن أبي هريرة، قال: قال رسول الله ﷺ " يضحك الله لرجلين، أحدهما يقتل الآخر، كلاهما يدخل الجنة.

ژباړه: رسول الله ﷺ وفرمايل: الله هغو دوه كسانو ته خاندي چې بل لره قتل كړي او بيا دواړه جنت ته داخل شي (يعني قاتل هم مسلمان شي). (التوحيد لابن خزيمه: ۲/۵۷۲).

- **الـرحـمــة:** الله تعالى رحمت لري رحمت هم د الله صفت دى څنګه چې د هغه د ذات سره لايق او مناسب دى.

**دلائل وربانډې دا دي:**

۱ - په (سورة ال عمران: ۱۰۷) كې الله متعال فرمايي:

{وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِى رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ}.

ژباړه: بهر حال هغه خلك چې سپين ځلېږي مخونه د هغوى نو هغوى به په رحمت د الله كې همېش وي.

۲ - په (سورة الانعام: ۵۴) كې الله متعال فرمايي:

{وكَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ}.

ژباړه: او ليكلى ستاسو رب پر ځان خپل رحمت (كول ستاسې لپاره).

۳ - دغه ډوّل په (۱۳۳) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي:

{وَرَبُّكَ الْغَنِىُّ ذُو الرَّحْمَةِ}.

ژباړه: ستا رب بې نيازه او د رحمت خاوند دى.

۴ – او دغه ډوّل په (۱۴۷) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي: {فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وٰسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُۥ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ}.

ژباړه: پس که هغوی تا درواغجن وګڼي، نو ورته ووايه چې: ستاسي رب د فراخ رحمت خاوند دی او نه شي واپس کېدی عذاب د هغه د مجرم قوم څخه.

٥ - په (سورالزمر: ٥٣) کې الله متعال فرمايي:

{قُلْ يٰعِبَادِىَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلٰٓى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُۥ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ}.

ژباړه: ووايه (ای پيغمبره) زما هغو (مؤمنو) بندګانو ته، چې پر خپلو ځانونو يې تېرى کړى دی، دا ورته ووايه: د الله د رحمت څخه مه ناهيلې کېږئ؛ په يقيني ډول الله ټولې ګناوې بخښي؛ هغه ښه بخښونکى او مهربان دی.

او دغه ډول بې شمېره نورو آيتونو او احاديثو کې هم د دې اثبات شوی چې دا د هغې څخه کافي دي.

- **الــعــذاب:** الله تعالى عذاب هم لري دا هم د الله اختياري صفت دی چې چا ته وغواړي عذاب ورکوي او که څوک وغواړي په خپل فضل سره هغه له دې څخه بچ ساتي.

په دې هم کتاب او سنت ک ډېر دلائل دي خو څو به ذکر کړم:

١ - په (سورة البقرة: ١٦٥) کې الله متعال فرمايي:

{وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ}.

ژباړه: او بېشکه الله د ډېر سخت عذاب والا دی.

۲ - په (سورة الحجر) کې الله متعال فرمايي: {وَأَنَّ عَذَابِى هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ} .ژباړه: او بېشکه زما عذاب هماغه دردناک عذاب دی.

۳ - په (سورۀ الغاشية: ۲۴) کې الله متعال فرمايي:

{فَيُعَذِّبُهُ اللَّهُ الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ}.

ژباړه: پس الله به هغه ته عذاب ورکړي لوی عذاب!

• **الـوجــه:** الله متعال مخ لري، او څنګه چې د هغه د ذات شان او جلال سره لايق دي هماغسې مخ لري مونږ يې په ظاهر ايمان لرو کيفيت يې الله ته سپارو.

**دلائل ورباندې دا دي:**

۱ - په (سورة البقرة: ۱۱۵) کې الله متعال فرمايي:

{وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ وٰسِعٌ عَلِيمٌ}.

ژباړه: او خاص د الله لپاره دی مشرق او مغرب ټول پس هر طرف چې تاسو مخه کړئ هغې طرف د الله مخ دی بېشکه الله د ډېرې پراختيا خاوند او په هر څه علم لرونکی دی.

۲ - دغه ډول په (۲۷۲) نمبر آيت کې الله متعال فرمايي:

{وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللَّهِ}.

ژباړه: او تاسو نه خرچ کوئ مګر د الله د مخ د لټون لپاره.

٣ - په (سورة الانعام: ٥٢) کې الله متعال فرمايي:

{وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِىِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۥ}.

ژباړه: او ونه شړې هغه خلك چې شپه او ورځ خپل رب ته لاس په دُعاء دي او په دې سره دهغه مخ (ليدل) غواړي.

٤ - په (سورة الرعد: ٢٢) کې الله متعال فرمايي:

{وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ}.

ژباړه: او هغه خلک چې هغوی صبر کړی لپاره د لټون د مخ د الله.

٥ - په (سورة الكهف: ٢٨) کې الله متعال فرمايي:

{وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِىِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۥ}.

ژباړه: او صبر (ملګری) كه ځان (زړه) خپل د هغه چا سره چې هغوی سحر او مابښام د رب ښخه دعاوې غواړي اراده لري (په دې سره) د مخ د هغه.

٦ - په (سورة القصص: ٨٨) کې الله متعال فرمايي: {وَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلٰهًا ءَاخَرَ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ ۥ لَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ}.

ژباړه: او له الله سره کوم معبود مه را بله. له هغه پرته بل هیڅ معبود نشته هر شی هلاک کېدونکی دی مګر مخ د هغه اختيار د فيصلې د هغه دی او همده طرف ورګرځېدل دي.

٧ - په (سورة الرحمان: ٢٧) کې الله متعال فرمايي:

{وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَٰلِ وَالْإِكْرَامِ}.

**ژباړه:** او باقي به پاتې وي مخ د رب ستا چې د جلال او عزت خاوند دی.

- **السميع والبصير:** الله متعال اورېدل هم کوي، او ليدل هم کوي، دا هم په خپل حقيقت حمل دی کيفيت يې د متشابهاتو د جملې څخه دی الله ته سپارل کېږي.

دلائل وربانديې بې حده زيات دي يو څو د هغې څخه دا دي:

١ - په (سورة الشورى: ١١) کې الله متعال فرمايي:

{فَاطِرُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَٰجًا وَمِنَ الْأَنْعَٰمِ أَزْوَٰجًا يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ}.

ژباړه: د آسمانونو او ځمکې پيدا کوونکی دی پيدا کړي يې دي تاسې ته ستاسو له خپل جنس څخه جوړې او همداسې يې په څارويو او ځناورو کې هم (د همغو همجنس) جوړې پيدا کړي، همداسې خورئ تاسې په هغې کې نشته په مثل د هغه هيڅ شی او هغه د هر څه اورېدونکی او ليدونکی دی.

٢ - په (سورة الغافر: ٢٠) کې الله متعال فرمايي:

{وَاللَّهُ يَقْضِي بِالْحَقِّ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَقْضُونَ بِشَيْءٍ إِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ}.

ژباړه: او الله به په حق  فيصله وكړي. پاتې شول هغه چې (دغه مشركان يې) د الله څخه پرته بولي، هغوی د هېڅ شي فيصله كوونكي هم نه دي. بېشكه همدا الله د هر څه اورېدونكی او ليدونكی دی.

٣ – دغه ډول په (٥٦) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي:

{فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ إِنَّهُۥ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ}.

ژباړه: پس پناه وغواړه په الله باندې بېشكه هغه ښه اورېدونكی او ښه ليدونكی دی.

٤ – په (سورة الاسراء: ١) كې الله متعال فرمايي:

{سُبْحَٰنَ الَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِى بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ إِنَّهُۥ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ}.

ژباړه: پاكي ده هغه ذات ته چې يوه شپه كې يې خپل بنده له مسجد حرام څخه تر هغه لرې (اقصى) مسجد پورې بوته، هغه چې د هغه چاپېريال مو بركتي كړی دی، د دې لپاره چې خپلې ځينې نښانې پرې وګورو په حقيقت كې هماغه (الله) د هر څه اورېدونكی او ليدونكی دی.

- **اتيــان او مــجـيئت:** يعنې الله تبارک وتعالى  راتلل هم  كوي، دا هم د الله متعال فعلي اختياري صفت دی حقيقت يې الله ته معلوم دی په ظاهر يې ايمان واجب ګڼو.

**دلائل ورباندې دا دي:**

١ - په (سورة الفجر: ٢٢) كې الله متعال فرمايي:

{وَجَآءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا}.

ژباړه: او رابه شي رب ستا خپل او ملائک پداسې حال کې چې صف صف به ولاړ وي.

٢ - عن أبى هريرة عن رسول الله ﷺ ... فيأتيهم الله فيقول: أنا ربكم، فيقولون هذا مكاننا حتى يأتينا ربنا، فإذا جاء ربنا عرفناه، فيأتيهم الله فيقول: أنا ربكم، فيقولون: أنت ربنا.

**ژباړه:** پس دوى ته به الله خپله راشي ورته به ووايي: زه ستاسو رب يم دوى به ورته ووايي دا زموږ ځاى دى تردې چې زموږ رب موږ ته راشي پس چې كله زموږ رب راشي موږ هغه پېژنو نو پس الله به ورته راشي نو ورته به وايي زه ستاسو رب يم دوى به ورته ووايي هو! ته زموږه رب يې.

(صحيح البخاري، باب: فضل السجود، رقم الحديث: ٨٠٦).

٣ - وكذا فى (صحيح مسلم، باب: معرفة طريق الرؤية، رقم الحديث: ١٨٢).

٤ - عن أبى هريرة عن النبي ﷺ... إذا جمع الله الأولى والأخرى، يوم القيامة، جاء الرب تبارك وتعالى إلى المؤمنين، فوقف عليهم والمؤمنون على كوم ، فقالوا: لعقبة ما الكوم؟

قال: المكان المرتفع، فيقول: هل تعرفون ربكم؟

ژباړه: چې کله الله ړومبني او وروستني راجمع کړي د قيامت په ورځ رب تبارک وتعالى به مؤمنانو ته راشي دوى باندې به اودرېږي او مؤمنان به په کوم باندې وي صحابه وو پوښتنه وکړه کوم څه ته وايي نبي ﷺ وفرمايل: کوم پورته ځاى ته وايي نو الله به ورته ووايي تاسو خپل رب پېژنئ؟

(التوحيد لابن خزيمة: ٢/٥٧٥، رقم الحديث: ٥٧٥).

٥ - وكذا (الرؤية للدارقطني: صــ ١٢٤، رقم الحديث: ٢٢).

- **الــكـــرسى:** الله کرسي لري، کرسي د هغه د قدمونو ځاى دى.

**دلائل په دې باندې هغه دا دي:**

١ - په (سورة البقرة: ٢٥٥) کې الله متعال فرمايي:

{وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَٰوٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَلَا يَـُٔودُهُۥ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ}.

ژباړه: فراخه ده کرسي د الله د آسمانونو او ځمکو څخه او نه ستړى کوي الله لره ساتنه د آسمانونو او ځمکو او هغه لوړ او لوى دى.

٢ - عن أبي ذر الغفاري ... ما السماوات السبع في الكرسي إلا كحلقة ملقاة بأرض فلاة، وفضل العرش على الكرسي كفضل تلك الفلاة على تلك الحلقة.

ژباړه: نبيﷺ فرمايي: نه دي آسمانونه اوه واړه د كرسى په مقابل كې لكه يو حلقه (بنګړى) چې په صحرا كې وي او لوى والى د عرش په كرسى لكه لوى والى د دغه صحرا ځمكې په دغه بنګړي باندې ..... (العرش وماروي فيه لابن أبي شيبة، رقم الحديث: ٥٨؛ العرش للذهبي: ١/٣٢٩).

شيخ الإسلام ابن تيمية رحمه الله فرمايي:

"الكرسي ثابت بالكتاب والسنة وإجماع السلف"

**ژباړه:** كرسي په كتاب سنت او اجماع د امت باندې ثابته ده (مجموع الفتاوى: ٥٨٤/٦).

دا او دېته ورته جمله هغه صفات چې الله متعال خپله ځانته ثابت كړي او يا هم ورته نبي كريم صلى الله عليه وسلم ثابت كړي دا به ټول حقيقي وي هېڅ قسم انكار، تأويل او تكييف او يا تشبيه او تمثيل به په كې روا نه وي، د دې باره كې چې د صحابه كرامو تابعينو او جمله سلف صالحو كوم اعتقاد وو هماغه به د هر مسلمان عقيده وي.

مشهور محدّث علامه امام ابن خزيمه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: فنحن وجميع علمائنا من أهل الحجاز وتهامة واليمن، والعراق والشام ومصر، مذهبنا: أنا نثبت لله ما أثبته الله لنفسه، نقر بذلك بألسنتنا، ونصدق ذلك بقلوبنا، من غير أن نشبه وجه خالقنا بوجه أحد من المخلوقين، عز ربنا عن أن يشبه

المخلوقين، وجل ربنا عن مقالة المعطلين، وعز أن يكون عدما كما قاله المبطلون، لأن ما لا صفة له عدم، تعالى الله عما يقول الجهميون الذين ينكرون صفات خالقنا الذي وصف بها نفسه في محكم تنزيله، وعلى لسان نبيه محمد ﷺ.

ژباړه: مونږ او د ټول اهل علمو د حجاز، تهامه، یمن، عراق، شام او مصر والا دا مذهب دی چې مونږ هغه څه الله ته ثابتوو چې څه هغه ځان ته ثابت کړي په دې باندې مونږ په خپلو ژبو اقرار کوو او په زړونو کې یې تصدیق کوو، په غیر له دې چې مونږ دې مخ د خپل خالق د کوم مخ د مخلوق سره مشابه کړو، عزتمند دی رب زمونږ له دې څخه چې هغه د مخلوق سره مشابه کړی شي او لوړ دی رب زمونږ د جهمیه و د مقالې (ګمان او عقیدې) څخه، او قوي دی له دې چې دا دې عدم وګرځي لکه څنګه چې باطل پرست وایي ځکه څه شی چې صفت نه لري هغه عدم (نشت) وي، نو لوړ دی رب زمونږ له دې نه چې جهمیه یې وایي هغه جهمیه چې زمونږ د خالق د صفاتو څخه انکار کوي، هغه چې هغه ورباندې په خپل محکم نازل شوي کتاب کې خپل ځان موصوف کړی او یا یې د خپل نبي ﷺ په ژبه باندې ځان موصوف کړی دی.

(التوحيد لإبن خزيمة: ٢٧/١).

## پنځمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې الله متعال د ذات په اعتبار سره په عرش باندې پورته او د علم، قدرت، تصرف او سلطنت په اعتبار سره يې په هر ځاى کې ګڼو.

دلايل په دې باندې د قرآ ن کريم دا اوه (٧) آيتونه دي:

١ - په (سورة الأعراف: ٥۴) کې الله متعال فرمايي:

{إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ}.

ژباړه: بېشکه رب ستاسو الله دى هغه چې آسمانونه او ځمکې يې په شپږ ورځو کې پيدا کړي او بيا له هغې وروسته په عرش باندې پورته شو.

٢ - په (سورة يونس: ٣) کې الله متعال فرمايي: {إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ}.

ژباړه: بېشکه رب ستاسو الله دى هغه چې آسمانونه او ځمکې يې په شپږ ورځو کې پيدا کړي او بيا له هغې وروسته په عرش باندې پورته شو.

٣ - په (سورة الرعد: ٢) کې الله متعال فرمايي:

{اللَّهُ الَّذِى رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ}.

ژباړه: الله هغه ذات دی چې آسمانونه يې له ستنو پرته همداسې درولي دي، تاسې يې په خپله وینئ. بیا له هغې بعد پر عرش پورته شوی.

۴ - په (سورة طه: ۵) کې الله متعال فرمايي:

{الرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى}.

ژباړه: رحمان ذات په عرش پورته شوی دی.

۵ - په (سورة الفرقان: ۵۹) کې الله متعال فرمايي:

{الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ الرَّحْمٰنُ فَسْـَٔلْ بِهِۦ خَبِيرًا}.

ژباړه: الله هغه ذات دی چې آسمانونه او ځمکې او هغه څه چې د دې ترمنځه دي دا يې په شپږ ورځو کې پیدا کړل او بیا له هغې وروسته په عرش باندې پورته شو دا رحمان ذات دی د چا علم لرونکي څخه پوښتنه وکړه.

۶ - په (سورة السجدة: ۴) کې الله متعال فرمايي:

{اللَّهُ الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ مَا لَكُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا شَفِيعٍ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ}.

ژباړه: الله هغه ذات دی چې پیدا يې کړل آسمانونه او ځمکه او ټول هغه څه چې د آسمانونو او ځمکې په منځ کې دي. بیا هغه پر عرش باندې پورته شو نشته تاسو ته بغير له هغه څخه څه دوست او سفارشي ایا

تاسو نصیحت نه اخلئ؟

۷ - په (سورة الحدید: ۴) کې الله متعال فرمایي:

{هُوَ الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ}.

ژباړه: الله همغه ذات دی چې آسمانونه او ځمکه یې په شپږو ورځو کې پیدا کړل؛ او بیا له هغې وروسته پر عرش باندې پورته شو.

دا د عرش متعلق د قرآن نصوص دي د دې نه بغیر په بې شمېره احادیثو کې هم د عرش یادونه شویده چې الله عرش لري او دا د الله د سلطنت تخت دی او الله په دې باندې پورته شوی دی څنګه چې د هغه د شان جلال او مقام سره لایق وي، کیفیت یې هېڅ مخلوق ته نه دی معلوم او همدا د اهل السنة والجماعة عقیده ده.

## په دې د یو څو أهل علمو أقوال ملاحظه کړئ:

۱ - الشیخ الأصبهاني، اوأبو بکر البیهقي، د یحیی بن یحیی څخه نقل کړي چې هغه فرمایي: کنا عند مالك بن أنس، فجاء رجل، فقال: یا أبا عبد الله {الرحمن علی العرش استوی} کیف استوی؟، فأطرق مالك برأسه حتی علاه الرحضاء ثم قال: «الاستواء غیر مجهول، والکیف غیرمعقول، والإیمان به واجب، والسؤال عنه بدعة، وما أراك إلا مبتدعا، ثم أمر به أن یخرج.

ژباړه: مونږ د امام مالکرحمه الله سره ناست وو چې یو سړی راغی هغه {الرحمن على العرش استوى} آیت ولوست بیا یی وویل: ای ابو عبدالله! الله څنګه استوی کړې؟

امام مالک رحمه الله خپل سر وځانډه تردې چې ټول خولو لوند کړ، بیا یې وویل: استواء د الله معلومه ده، نامعلومه نه ده، کیفیت یې په عقل نشي معلومېدی ایمان ورباندې واجب دی، پوښتنه د دې د کیفیت دا بدعت ده او زه نه وینم تا لره مګر بدعتي بیا یې امر وکړ او دغه کس وویستل شو (له مجلس څخه).

٢ – الإمام هشام بن عبيد الله الرازي رحمه الله ، هشام بن عبيد الله الرازي د محمد بن الحسن، چې د الرّي قاضي وو، هغه یو کس د جهمیت د اعتقاد په وجه بندي کړی وو نو هغه چې توبه وویستله نو بیا هشام ته راوستلی شو د دې لپاره چې خوشې یې کړي، نو ویې ویل: ټول حمد د الله دی چې ما توبه وویسته نو بیا ورڅخه هشام امتحان واخیسته نو ورته یې وفرمایل:

أتشهد أن الله على عرشه بائن من خلقه؟ فقال: أشهد أن الله على عرشه، ولا أدري ما بائن من خلقه. فقال: (ردوه إلى الحبس، فإنه لم يتب) .

ژباړه: آیا ته دا ګواهي ورکوې چې الله په عرش دی او د مخلوق څخه جدا دی؟ نو هغه وویل: زه ګواهي ورکوم چې الله په عرش دی خو نه

پوهېږم په هغه څه چې د خلکو څخه جدا دی، نو هشام وفرمایل: واپس يې زندان ته واچوئ ده توبه نه ده ويستلې!

٣ - يحيى بن معاذ الرازي رحمه الله، موصوف فرمايي: «إن الله على العرش بائن من الخلق، وقد أحاط بكل شيء علما، وأحصى كل شيء عددا، لا يشك في هذه المقالة إلا جهمي رديء ضليل، وهالك مرتاب، يمزج الله بخلقه، ويخلط منه الذات بالأقذار والأنتان.

ژباړه: بېشکه الله په عرش باندې استواء کړې د مخلوق څخه جدا دی او هر شی يې په خپل علم سره راګير کړی او هر شی يې په شمار کې راګير دی، شک نه کوي په دې خبره کې مګر جهمي، بې کار، ګمراه، هلاک شوی، شکمند چې الله د خپل مخلوق سره ګډوي او د الله سره ګند او نجاست يو ځای کوي.

٤ - الإمام ابو عيسى الترمذي رحمه الله: موصوف د الله متعال متعلق فرمايي: «هو على العرش كما وصف في كتابه، وعلمه وقدرته وسلطانه في كل مكان.»

ژباړه: الله په خپل عرش باندې دی لکه څنګه يې چې په خپل کتاب کې فرمايلي او علم قدرت او بادشاهي يې په هر ځای کې ده.

٥ - الإمام ابو زرعةالرازي رحمه الله: د موصوف څخه د {الرحمن على العرش استوى} .

د تفسير متعلق پوښتنه وشوه هغه وفرمايل:

«تفسيره كما تقرأ، هو على العرش، وعلمه في كل مكان، من قال غير هذا فعليه لعنة الله).

**ژباړه:** تفسير همدا دی چې څنګه يې قرائت کوې هغه پر عرش دی او علم يې په هر ځای کې دی او چا چې بغير له دې نه نور څه وويلي نو پر هغوی دې د الله لعنت وي.

۶ - الإمام عبد الله بن المبارك رحمه الله : د موصوف څخه يو کس پوښتنه وکړه: يا أبا عبد الرحمن إني أكره الصفة ـ عنى صفة الرب ـ فقال له عبد الله بن المبارك «أنا أشد الناس كراهة لذلك، ولكن إذا نطق الكتاب بشيء قلنا به، وإذا جاءت الآثار بشيء جسرنا عليه»

ژباړه: ای ابو عبدالله زه د صفت بيانول نه خوښوم (يعني د الله صفت بيانول) نو عبدالله بن المبارک ورته وفرمايل: زه ډېر ناخوښوونکی يم د دې خو چې کله قرآن د دې څخه څه ووايي بيا مونږ هم هغه وايو او چې کله احاديث په دې باندې راشي نو بيا مونږ زړور کيږو د دې په بيان.

او همدا ډول عبد الله بن أحمد هم صحيح سندونو سره د ابن المبارک څخه نقل کړي هغه ته وويل شو:

بماذا نعرف ربنا؟ قال: «بأنه فوق سماواته على عرشه بائن من خلقه، ولا نقول كما تقول الجهمية: أنه ههنا في الأرض»

ژباړه: مونږ خپل رب به څه وپېژنو؟ نو هغه ورته وفرمايل: ببشکه الله د خپلو آسمانونو دپاسه په عرش باندې دی د خپل مخلوق څخه جدا دی او مونږ داسې نه وايو لکه جهميه يې چې وايي چې دا دی دلته په ځمکه کې دی.

٧ - الإمام محمد بن إسحاق بن خزيمة رحمه الله: موصـوف فرمايي: «من لم يقل: إن الله فوق سماواته على عرشه بائن من خلقه، وجب أن يستتاب، فإن تاب وإلا ضربت عنقه ثم ألقي على مزبلة، لئلا يتأذى بنتن ريحه أهل القبلة، ولا أهل الذمة.

**ژباړه:** چا چې دا ونه ويلې چې ببشکه الله د آسمانونو څخه پورته په عرش باندې دی او د خپل مخلوق څخه جدا دی نو واجب دي چې توبه پرې وويستلی شي او که له توبې ويستو انکار کوي نو څټ دې ورته ووهلی شي، او بيا دې په يو ډېران وغورځولی شي، د دې لپاره چې مسلمانان او اهل ذمه يې د بدبويي څخه په تکليف نشي.

٨ - الإمام عبد الرحمن بن مهدي رحمه الله: موصوف فرمايي:

«أصحاب جهم يريدون أن يقولوا: إن الله لم يكلم موسى، ويريدون أن يقولوا: ليس في السماء شيء، وإن الله ليس على العرش، أرى أن يستتابوا، فإن تابوا وإلا قتلوا»

ژباړه: د جهم ملګري اراده لري دا چې وايي الله د موسى عليه السلام سره خبرې نه دي کړي، او دا وايي نشته په آسمان کې هيڅ شی، او الله پر عرش باندې نشته، نو زما دا رأيه ده چې د دوی څخه دې د توبې مطالبه وشي که توبه يې وويسته نو فبها او که ويې نه ويستله نو قتل دې کړی شي.

٩ - الإمام ابن أبي زمنين رحمه الله: موصوف فرمايي:

ومن قول أهل السنة: إن الله عز وجل خلق العرش واختصه بالعلو والارتفاع فوق جميع ما خلق، ثم استوى عليه كيف شاء، كما أخبر عن نفسه في قوله تعالى {الرحمن على العرش استوى} وقوله تعالى: {ثم استوى على العرش يعلم ما يلج في الأرض}.

ژباړه: او د أهل السنة د ويناوو څخه دا ده چې: بېشکه الله عزوجل عرش پيدا کړی او هغه يې په ټول مخلوق باندې پورته او لوړ ګرځولی دی بيا پر هغې پورته شوی دی څنګه يې چې خوښه ده لکه څنګه چې هغه خبر ورکړی دی د خپل ځان څخه په دې وينا خپله کې چې فرمايي: {رحمان ذات په عرش پورته شوی}، او د هغه دا وينا چې فرمايي: {بيا (رحمن ذات) په عرش پورته شو او علم لري په هغه څه چې په ځمکه کې داخلېږي}.

١٠ - علامه مفسر قرطبي رَحِمَهُ ٱللَّهُ: موصوف فرمايي:

وقد كان السلف الأول رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ لا يقولون بنفي الجهة ولا ينطقون بذلك، بل نطقوا هم والكافة بإثباتها لله تعالى كما نطق كتابه وأخبرت رسله. ولم ينكر أحد من السلف الصالح أنه استوى على عرشه حقيقة.

وخص العرش بذلك لأنه أعظم مخلوقاته، وإنما جهلوا كيفية الاستواء فإنه لا تعلم حقيقته. قال مالك رَحِمَهُ ٱللَّهُ: الاستواء معلوم- يعني في اللغة- والكيف مجهول، والسؤال عن هذا بدعة. وكذا قالت أم سلمة رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا.

وهذا القدر كاف، ومن أراد زيادة عليه فليقف عليه في موضعه من كتب العلماء. والاستواء في كلام العرب هو العلو والاستقرار.

**ژباړه:** او وو ړومبني سلف (صحابه تابعين او د هغوی اتباع) چې هغوی د الله څخه د جهت نفې نه كوله او نه يې په دې لفظ تلفظ كولو، بلكې دوی او ټولو د دې اثبات كولو الله ته لكه څنګه چې په دې كتاب تصريح او رسولانو خبر وركړی او صالحو سلفو څخه هېچا د دې څخه انكار نه دی كړی چې الله په عرش باندې حقيقة پورته شوی دی او عرش يې د دې وجې خاص كړی چې دا په جمله مخلوقاتو كې غټ دی او دوی چې بې علمي اعلان كړې هغه يې د دې استواء د كيفيت باره كې كړې، ځكه د دې حقيقت نه دی معلوم، لكه څنګه چې امام مالك رحمه الله فرمايلي: استواء معلومه ده يعنې په لغت كې او كيفيت يې مجهول

دی او پوښتنه کول د دې څخه بدعت دی او همدارنګه أم سلمه ﵂ هم فرمايلي دي او (دلته) همدا اندازه بحث کافي دی که څوک په دې باب کې مزيد معلومات غواړي نو هغه دې دغه موضوع د اهل علمو په کتابونو کې وګوري او استواء د عربو په کلام کې پورته والي او قرار نيولو ته وايي. (تفسير القرطبی: ۲۲۰/۷).

## شپږمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې الله رب العالمين هره شپه وروسته د دريمې حصې د تيريدو نه د هغې څخه د عرش څخه د دنيا آسمان ته راکوزيږي او د تر صبح صادق پورې دې آسمان کې وي.

دليل په دې باندې هغه حديث دی چې د صحيحينو په شمول جمله کتابونو دا حاديثو ذکر کړی چې د صحيح مسلم الفاظ داسې دي چې: رب راکوز شي د دنيا آسمان ته نو فرمايي: "هل من مستغفر؟ هل من تائب؟ هل من سائل؟ هل من داع؟ حتی ينفجر الفجر

ژباړه: آيا څوک بخښنه طلب کوونکی شته؟ آيا څوک توبه ويستونکی شته؟ آيا څوک څه غوښتونکی شته؟ آيا څوک دعاء کونکی شته؟ تردې چې سحر شي. (صحيح مسلم، باب: الترغيب في الدعاء والذكر في آخر الليل، والإجابة فيه، رقم الحديث: ۷۵۸؛ وصحيح البخاري، باب: الدعاء في الصلاة من آخر الليل, رقم الحديث: ۱۱۴۵).

# د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم باره کې زمونږ عقيده.

## اوله عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې محمد ﷺ د الله تعالى بنده او د هغه رسول دی د الله رب العالمين له لوري د اخري رسول او خاتَم الأنبياء په صفت كافة الانس والجن ته رالېږل شوی دی دا په نسب د قريش د غوره قبيلې بني هاشمو څخه دی، او په قوم عرب دی.

**دلائل ورباندې دا دي:**

١ - په (سورة الأعراف: ١٥٨) کې الله متعال فرمايي:

{قُلْ يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ إِنِّى رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا}.

ژباړه: ورته ووايه: "ای انسانانو! زه ستاسو ټولو ته د الله له لوري رالېږل شوی يم.

٢ - په (سورة الأحزاب: ٤٠) کې الله متعال فرمايي: {مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّـۧنَ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا}.

ژباړه: (ای خلکو!) نه دی محمد ستاسې له نارينه و څخه د هېچا پلار، هغه خو د الله رسول او اخرنی او وروستنی نبي دی، او الله د هر شي علم لرونکی دی.

٣ - عن جابر بن عبد الله أن النبي ﷺ قال ... وكان النبي يبعث إلى قومه خاصة وبعثت إلى الناس عامة.

ژباړه: او وو به نبي (له مانه مخکې) چې خپل قوم ته به خاص لیږل کېده او زه ټولو انسانانو ته عمومي رالیږل شوی یم (صحیح البخاري, کتاب التیمم, رقم الحدیث: ٣٣٥).

٤ -(المستدرک على الصحیحین, رقم الحدیث: ٦٩٥٣، معجم الکبیر للطبراني، رقم الحدیث: ١٣٦٥٠)

٥ - عن أبي هريرة أن رسول الله ﷺ قال ... فأنا اللبنة وأنا خاتم النبيين

ژباړه: زه (هغه پوره کوونکې) ښښته یم او زه د انبیاؤ اخري یم (صحیح البخاري، باب: خاتم النبیین ﷺ، رقم الحدیث: ٣٥٣٥).

## دوهمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې رسول الله ﷺ د څلوېښت(۴۰) کلنۍ په عمر پيغمبر شوی، ديارلس (۱۳) کاله کم او زيات يې په مکه کې دعوت کړی، او بيا يې د الله په امر له مکې څخه مدينې ته هجرت کړی، چې لس کاله يې بيا په مدينه کې دعوت او جهاد سره تېر کړي،د درې شپېته (۶۳) کاله په عمر کې وفات شوی او له دنيا څخه اعلی عليين ته نقل شوی، جسد يې مدينه کې د عايشې مورې رضي الله عنها په کوټه کې د خپلې بسترې پر ځای دفن او روح يې په اعلی جنتونو کې دی، د برزخ په ژوند ژوندی او د دنيا د ژوند په اعتبار سره وفات دی، د دنيا د هېڅ بشه او بد څخه علم نه لري خو د نبوت او رسالت مقام يې تر قيامته باقي دی، د ده څخه بعد بل هېڅ نبي د نبي او رسول په صفت نشي راتلی، عيسی عليه السلام چې راځي نو هغه به هم د ده د امتي په حيث راکوزېږي او د محمد ﷺ د راوړې شريعت اتباع به کوي، د نبي ﷺ څخه وروسته چې چا هم د نبوت دعوی کړې او يا يې څوک کوي نو هغه به کذّاب، دجال او ملعون وي.

### دلائل په دې باندې دا دي:

۱ - ابن عباس، رضي الله عنهما فرمايي: «بعث رسول الله ﷺ ،لأربعين سنة فمكث بمكة ثلاث عشرة يوحى إليه ثم أمر بالهجرة فهاجر عشر سنين ومات نبي الله ﷺ وهو ابن ثلاث وستين سنة.

ژباړه: رسول الله ﷺپه څلویښت کلنۍ کې رالیږل شوی په مکه کې یې دیارلس (۱۳) کاله تېر کړل چې وحې یې ورته کېدله بیا ورته امر وشو په هجرت باندې نو په مدینه کې یې لس (۱۰) کاله تېر کړل او بیا نبي ﷺ وفات شو چې هغه د دري شپېته کالو وو. (دلائل النبوة للبيهقى، باب: سن رسول الله ﷺحين بعث نبيا: ۲/۱۳۱).

۲ - ابن عباس، رضي الله عنهما فرمايي: أنزل على رسول الله ﷺ وهو ابن أربعين، فأقام بمكة ثلاث عشرة وبالمدينة عشرا، وتوفي وهو ابن ثلاث وستين.

ژباړه: په رسول الله ﷺ وحې نازله شوه او هغه د څلويښتو (۴۰) کالو وو په مکه کې ديارلس (۱۳) کاله او په مدينه کې لس (۱۰) کاله پاتې شو او وفات شو او هغه د دري شپېته (۶۳) کالو وو. امام ترمذی رحمه الله فرمايي: «هذا حديث حسن صحيح»

(سنن الترمذى، باب: في مبعث النبيﷺ، وابن كم كان حين بعث؟ رقم الحديث: ۳۶۲۱)

۳ - له أبو بكر رضي الله عنه څخه روايت دی هغه فرمايي: سمعت من رسول الله ﷺ شيئا ما نسيته، قال: «ما قبض الله نبيا إلا في الموضع الذي يحب أن يدفن فيه»، ادفنوه في موضع فراشه.

ژباړه: ما د رسول الله ﷺ څخه څه اورېدلي چې هېر کړي مې نه دي هغه فرمايلي: الله هېڅ نبي نه وفات کوي مګر دا چې هغه په داسې ځای کې هغه وفات کړي چې هغه يې خوښوي چې هلته هغې ځای کې دفن شي.

(سنن الترمذى، باب: ما جاء في دفن النبي ﷺحيث قبض، رقم الحديث: ١٠٠٨).

۴ - ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي: چې رسول الله ﷺوفرمايل:

كيف أنتم إذا نزل ابن مريم فيكم وإمامكم منكم؟

ژباړه: څنګه به وي هغه وخت چې تاسو ته د مريم ځوی عيسى عليه السلام راکوز شي او ستاسو امام له تاسو څخه وي.

(صحيح مسلم، باب: نزول عيسى ابن مريم حاكما بشريعة نبينا محمد ﷺ, رقم الحديث: ٢٤٣-٢٤٢).

۵ - له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي:

نبي ﷺ وفرمايل: ... ولا تقوم الساعة حتى يبعث دجالون كذابون، قريبا من ثلاثين، كلهم يزعم أنه رسول الله.

ژباړه: او قيامت به قائم نشي تردې چې ډېر دجل کوونکي، ډېر درواغجن راووځي چې تقريبا دېرش کسان به وي هر يو به دا ګمان کوي چې دی د الله رسول دی. (صحيح البخاري، باب: خروج النار، رقم الحديث: ٧١٢١؛ وباب: علامات النبوة في الاسلام، رقم الحديث: ٣٦٠٨).

## دریمه عقیده:

مونږ دا عقیده لرو چې نبي کريم ﷺ مخلوق وو او په غيبو يې علم نه لرلو.

### دلائل په دې دا دي:

١ - په (سورة الانعام: ٥٠) کې الله متعال فرمايي:

{قُل لَّآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِى خَزَآئِنُ اللَّهِ وَلَآ أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ إِنِّى مَلَكٌ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ}.

ژباړه: دوی ته ووایه ای پیغمبره "زه تاسې ته دا نه وایم چې زما سره د الله خزانې دي، نه زه د غیبو علم لرم او نه تاسې ته دا وایم چې زه ملائک یم، زه خو یواځې د هغې وحې پیروي کوم چې ما ته را استولی کیږي، بیا له دوی څخه پوښتنه وکړه: «آیا ړوند او لیدونکی دواړه برابرېدای شي؟ آیا تاسې فکر نه کوئ؟

٢ - په (سورة الأعراف: ١٨٨) کې الله متعال فرمايي:

{قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِى نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ اللَّهُ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِىَ السُّوٓءُ إِنْ أَنَاإِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ}.

ژباړه: ووايه دوی ته ای نبي! زه د خپل ځان لپاره د څه ګټې او زيان واك نلرم، همااغه الله چې څه غواړي، هغه کيږي، او که زه په غيبو پوه وای، نو ما به ډېرې ګټې ځان ته اړولی وای، او ما ته به هېڅکله څه

زيان نه وو رسېدلی، زه خو يواځې يو خبروونکی او زېری ورکوونکی يم، د هغو خلکو لپاره چې زما خبره مني.

٣ - په (سورة النمل: ٦٥) کې الله متعال فرمايي: {قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ}.

ژباړه: ووايه دوی ته ای نبي په آسمانونو او ځمکه کې هېڅوك له الله پرته د غيبو علم نلري او هغوی نه پوهېږي چې کله به راپاڅول کېږي. (له قبرونو څخه).

## څلورمه عقيده:

مونږ دا عقيده لرو چې د الله نبي محمد رسول الله ﷺ باندې هېڅ انسان فضيلت او غوره والی نه لري، ولو که نبي هم وي نو لهذا د هېچا قول او عمل ته به د ده ﷺ په قول او فعل ترجيح نشي ورکول کېدای د ده هر قول او عمل، فعل او تقرير دا به د مسلمان لپاره حجت وي ولو د هر آسمان نه لاندې او د هرې ځمکې دپاسه هم وي، او کوم عمل او قول چې د رسول الله ﷺ څخه ثابت نه وي او خلک يې د ثواب د حصول او يا يې هم د عقاب نه د نجات په نيت کوي دا عمل به مردود او بدعت وي.

**په دې باندې دلائل دا دي:**

١ - أبو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی هغه فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: أنا سيد ولد آدم يوم القيامة، وأول من ينشق عنه القبر، وأول شافع وأول مشفع.

ژباړه: زه د ادم په اولاد کې سردار يم د قيامت په ورځ او لومړنی هغه کس يم چې قبر به ترې څېرې کېدای شي او ړومبنی شفاعت کوونکی يم او ړومبنی هغه کس يم چې شفاعت يې قبلېدای شي.

(صحيح مسلم، باب: تفضيل نبينا ﷺ على جميع الخلائق، رقم الحديث: ٢٢٧٨).

له عائشة رضي الله عنها څخه روايت دی فرمايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل:

من أحدث في أمرنا هذا ما ليس فيه، فهو رد.

ژباړه: چا چې زمونږ په دين کې داسې کار وکړ چې هغه د دې دين څخه نه وو نو هغه به رد وي. (صحيح البخاري، باب: إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود, رقم الحديث: ٢٦٩٧).

٣ - په (سورة الحجرات: ١) کې الله متعال فرمايي: {يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَىِ اللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ}.

ژباړه: ای مؤمنانو! د الله او د هغه د پيغمبر څخه مه وړاندې کېږئ او د الله څخه ووېرېږئ، الله د هر څه اورېدونکی او پوهېدونکی دی.

دغه ډول په (۲) نمبر آيت كريمه كې فرمايي: {يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَرْفَعُوٓا أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِىِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُۥ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَٰلُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ}.

ژباړه: اى مؤمنانو! خپل غږ د پيغمبر د غږ څخه مه پورته كوئ او مه له پيغمبر سره په لوړ غږ خبري كوئ لكه څنګه چې پخپلو منځو كې يو له بل سره په لوړ غږ خبري كوئ، هسې نه چې ستاسې ټول عملونه برباد شي او تاسې به خبر هم نه يې.

۴ - په (سورة الحشر: ۷) كې الله متعال فرمايي: {وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ}.

ژباړه: څه چې پيغمبر تاسې ته دركوي، هغه واخلئ؛ او له څه شي څخه چې تاسې منع كوي، له هغه څخه منع شئ، د الله څخه ووېرېږئ، الله سخت سزا وركوونكى دى.

## پنځمه عقیده:

زمونږ دا عقيده ده چې نبي كريم ﷺ په يوه شپه كې په ويښه د بيت الحرام څخه بيت المقدس او د هغه ځايه بره آسمانونو ته پورته شوى او هر آسمان كې يې د مختلفو انبياؤ سره ملاقاتونه شوي دي، تردې چې سدرة المنتهى ته رسېدلى چې دېته إسراء او معراج ويل كېږي، او بيا په همدې شپه كې بېرته واپس بيت الحرام ته راغلى.

### دلائل په دې باندې:

١- الله متعال په (سورة الإسراء: ١) كې فرمايي: {سُبْحَٰنَ الَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِى بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ إِنَّهُۥ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ}.

ژباړه: كامله پاكي ده هغه ذات لره چې يوه شپه كې يې خپل بنده له مسجد حرام څخه تر هغه لرې (اقصى) مسجد پورې بوته، هغه چې بركتي كړى مو دى چاپېريال د هغې، د دې لپاره چې خپلې ځينې نښانې ورې وګورو بېشكه الله د هر څه اورېدونكى او ليدونكى دى.

٢- د أنس بن مالك ؓ څخه روايت دى هغه فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: «أتيت بالبراق، وهو دابة أبيض طويل فوق الحمار، ودون البغل، يضع حافره عند منتهى طرفه»، قال: «فركبته حتى أتيت بيت المقدس»، قال: «فربطته بالحلقة التي يربط به الأنبياء»، قال "ثم دخلت

المسجد، فصليت فيه ركعتين، ثم خرجت فجاءني جبريل عليه السلام بإناء من خمر، وإناء من لبن، فاخترت اللبن، فقال جبريلﷺ: اخترت الفطرة، ثم عرج بنا إلى السماء.

ژباړه: زه پر براق باندې راغلم او هغه يو سپين اوږد حيوان وو د خر نه غټ او د قچر نه وړوکى وو، خپل سوم به يې د خپل نظر د لګېد په (فاصله) مقدار اېښود فرمايي: زهورباندې سپور شوم تردې چې بيت المقدس ته راغلم فرمايي: هغه مې په يوه حلقه پورې وتړلو په کومې پورې چې انبياؤ (خپلې سورلۍ) تړلې، بيا يې وفرمايل: زه مسجد ته داخل شوم دوه رکعته لمونځ مې پکې وکړ بيا رابهر شوم بيا جبريل عليه السلام  ماته راغى يو لوښي کې يې شراب او بل لوښي کې يې شيدې راوړې ما شيدې غوره کړې نو جبريل صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل: فطرت دې غوره کړ بيا پورته کړى شو مونږه آسمان ته.....الخ.

(صحيح مسلم، باب: الإسراء برسول الله ﷺ إلى السماوات، وفرض الصلوات, رقم الحديث: ٢٥٩).

٣ - (صحيح البخاري، باب: كيف فرضت الصلاة فى الاسراء؟ رقم الحديث: ٣٤٩)

## شپږمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې شفاعت عظمي دا د نبي ﷺ حق دی چې الله ورکړی او د الله په اجازه به شفاعت کوي، دغه ډول حوض کوثر حق دی چې دا د یوې میاشتې د مسافت په مقدار اوږد دی، اوبه يې د شيدو څخه سپيني دي او د مشکو څخه خوشبو داري دي، چې يو ځل يې وڅښې بيا به تږی نشې، نبي کريم ﷺ به د قيامت په ورځ د امت نه مخکې د امت انتظار کوي چې هغوی ته د دې څخه اوبه ورکړي.

### دلائل په دې باندې دا دي:

١ - په (سورة الکوثر: ١) کې الله متعال فرمايي: {إِنَّآ أَعۡطَيۡنَٰكَ ٱلۡكَوۡثَرَ}

ژباړه: بېشکه مونږ تا ته ای پیغمبره کوثر درکړی دی.

٢ - له جندب رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي: ما د نبي ﷺ څخه اورېدلي چې فرمايل يې: «أنا فرطكم على الحوض»

ژباړه: زه ستاسو نه مخکې په حوض ستاسو انتظار کوم!

(صحيح مسلم، باب: إثبات حوض نبينا ﷺ وصفاته, رقم الحديث: ٢٢٩٠-٢٢٩٢).

٣ - عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما فرمايي چې نبي ﷺ وفرمايل: حوضي مسيرة شهر، ماؤه أبيض من اللبن، وريحه أطيب من المسك، وكيزانه كنجوم

السماء، من شرب منها فلا يظمأ أبدا.

ژباړه: زما د حوض اوږد والی د يوې مياشتې د مزل په مقدار دی اوبه يې له شيدو سپينې دي او بوی يې له مسکو زيات خوشبودار دی او ګلاسونه يې د اسمان د ستورو نه زيات دي، چا چې د دې څخه څښل وکړل هغه به بيا بلکل تږی نشي! (صحيح البخاري، باب: في الحوض, رقم الحديث: ٦٥٧٩).

۴ -(صحيح البخاري، باب قوله:{عسى أن يبعثك ربك مقاما محمودا}رقم الحديث: ۴۷۱۸)

# د قـــرآن كريم باره كې زمــونږ عــقــيده.

## اوله عـقـيده:

زمونږ دا عقيده ده چې قران د "الحمد" څخه تر د "والناس" پورې د الله ﷻ حقيقي كلام دى جبريل په محمد رسول الله ﷺ د درويشت (٢٣) كالو په موده كې د الله له طرف نازل كړى دى.

### دليل وربانديې دا دي:

١- په (سورة البقرة: ٢) كې الله متعال فرمايي:

{ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ}.

**ژباړه:** دا (د الله) كتاب دى، په ده كې هېڅ شک نشته، د پرهېزګارانو لپاره لار ښوونكى دى.

٢- دغه ډول په (٩٧) نمبر آيت كې الله متعال فرمايي:

{قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلٰى قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِينَ}.

**ژباړه:** ورته ووايه: "كوم څوك چې له جبريل سره دښمني لري، هغه دې په دې وپوهېږي چې جبريل د الله په اجازه دا قرآن ستا زړه ته رسولى دى، چې د پخوانيو راغليو كتابونو تصديق او تاييد كوي او د مؤمنانو لپاره (لارښودنه او د بري) زېرى وركونكى دى.

٣ - جابر بن عبد الله ﵁ فرمايي: كان رسول الله ﷺ يعرض نفسه في الموسم على الناس في الموقف فيقول: «هل من رجل يحملني إلى قومه؟ فإن قريشا منعوني أن أبلغ كلام ربي» إسناده صحيح.

ژباړه: رسول الله ﷺوو چې خپل ځان به يې د حج په ورځو کې په خلکو پيش کولو ورته ويل به يې آيا داسې څوک شته چې ما خپل قوم ته بوځي بېشکه قريشو زه منع کړی يم له دې څخه چې زه د خپل رب کلام ورسوم.

امام دارمي فرمايي: د دې حديث اسناد صحېح دي (سنن الدارمی، باب: القران كلام الله, رقم الحديث: ٣٣٩٧).

٤ - ( الاتقان فی علوم القرآن: ٢٤/٤)

٥ -(البرهان فی علوم القران: ٤٧/٢)

## دوهمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې قرآن د الله كلام دى او د الله كلام د الله صفت وي چې څوک ورته مخلوق وايي هغه كافر ګڼو.

### په دې دلائل دا دي:

١ -(خلق أفعال العباد، باب: ما كان النبي يستعيذ بكلمات الله لا بكلام غيره .... صـ ٩٧)

٢ - يوسف بن موسى المروزي فرمايي: ما د أبو إبراهيم المزني څخه واورېدل چې ويل يې: القرآن كلام الله غير مخلوق ومن قال إن القرآن مخلوق فهو كافر.

ژباړه: قرآن د الله كلام دى مخلوق نه دى او چا كه وويل چې قرآن مخلوق دى نو هغه كافر دى.

٣ - يحيى بن يحيى رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي: من قال القرآن مخلوق , فهو كافر بالله العظيم , وعصى ربه وبانت منه امرأته.

ژباړه: چا كه وويل چې قرآن مخلوق دى نو دا په لوى الله باندې كافر شو د خپل رب نافرمان شو او ښځه پرې بائنه (طلاقه) شوه.

٤ - امام محمد بن إسماعيل البخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي:

القرآن كلام الله تعالى ليس بمخلوق، عليه أدركنا علماء الحجاز أهل مكة والمدينة،وأهل الكوفة والبصرة، وأهل الشام ومصر، وعلماء أهل خراسان.

ژباړه: قرآن د الله تعالی کلام دی مخلوق نه دی په همدې اعتقاد مونږ د حجاز، مکې او مدينې د کوفې او بصرې، د شام، مصر او خراسان علماء مونده کړي دي (الاسماء والصفات للبيهقي، رقم الأثر: ٥٥٧ - ٥٥٩ - ٥٥٨ -٥٦١).

٥ - (شرح السنة للبغوى: ١٨٥/١ الى -١٨٧، باب: الرد على من قال بخلق القران)

٦ - الحيدة والاعتذارفي الرعلى من قال بخلق القرآن كاملا.

## درېمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې څوک هم قرآن توهين وکړي ولو که د هغه په نزد وړوکی او معمولي توهين وي بيا هم دا انسان په دی سره مرتد او واجب القتل ګرځي.

**په دې دلائل دا دي:**

١ - په (سورة التوبة: ٦٥ - ٦٦) کې الله متعال فرمايي:

{وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ قُلْ أَبِاللَّهِ وَءَايٰتِهِۦ وَرَسُولِهِۦ كُنتُمْ تَسْتَهْزِءُونَ؛ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمٰنِكُمْ إِن نَّعْفُ عَن طَآئِفَةٍ مِّنكُمْ نُعَذِّبْ طَآئِفَةً بِأَنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ}.

ژباړه: او که چېرته ته له دوی څخه پوښتنه وکړې چې تاسې څه خبرې

کولي، نو سمدلاسه به ووايي چې مونږ خو ټوکې، مسخرې او ساعت تېري کوله، دوی ته ووايه: آيا ستاسې مسخرې او ساعت تېری له الله، او د هغه له آيتونو او د هغه له پيغمبر سره کوئ؟

اوس عذرونه مه کوئ، تاسې له ايمان څخه وروسته کافران شوي ياست." که مونږ ستاسې څخه يوه ډله وبخښو هم، نو بلې ډلې ته خو به مونږ هرو مرو سزا ورکړو، ځکه چې هغوی مجرمان دي.

٢ - شيخ الاسلام ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: وقد اتفق المسلمون على أن من استخف بالمصحف مثل أن يلقيه في الحش أو يركضه برجله إهانة له إنه كافر مباح الدم.

ژباړه: ټولو مسلمانانو په دې اتفاق کړی چې څوک د مصحف سپکاوی وکړي داسې چې په ګنده ګۍ کې يې واچوي او يا يې په پښه باندې ووهي د توهين له وجې، نو بېشکه دا کس کافر دی وينه تويول يې مباح (حلاله) ده. (مجموع الفتاوى: ٨/٤٢٥).

٣ - قاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: وأعلم أن من استخف بالقرآن أو المصحف أو بشئ منه أو سبهما أو جحده أو حرفا منه أو آية أو كذب به أو بشئ منه أو كذب بشئ مما صرح به فيه من حكم أو خبر أو أثبت ما نفاه أو نفى ما أثبته على علم منه بذلك أو شك في شئ من ذلك فهو كافر عند أهل العلم بإجماع قال الله تعالى (وإنه لكتاب عزيز لا يأتيه الباطل من بين

يديه ولا من خلفه تنزيل من حكيم حميد).

ژباړه: په دې پوه شه چې که چا د قرآن سپکاوی وکړ او یا يې د څه برخې د هغې او يا يې قرآن او مصحف ته ښکنځلې وکړې او يا يې ورڅخه انکار وکړ او يا يې د دې د تصريح حكم او خبر تكذيب وكړ او يا يې د دې مثبت نفي او نفي مثبت وګڼلو سره د دې چې په دې ښه پوه وي، او يا د دې په څه برخه کې څه شک وکړي نو دا کافر دی په اجماع د اهل علمو، الله تعالى فرمايي:

ژباړه: بيشكه دا خامخا داسې كتاب دی چې باطل ورته نه په مخامخ راتلی شي او نه ورته له شا طرف نه دا نازل شوی د حکیم او ستایل شوي ذات لخوا څخه. (الشفاء للقاضي:. ٢/١١٠١).

## څلورمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې قرآن د مخکني آسماني کتابونو: زبور، تورات، انجيل او نورو نازل شوو صحيفو لپاره ناسخوونکی کتاب دی چې د هر قسم تحريف څخه محفوظ دی، محفوظ وو، او محفوظ به وي چې څوک د دې د تحريف او يا تبديل عقيده لري او يا خپله د دې کوشش وکړي چې بدل او تحريف يې کړي دا انسان کافر دی او د الله د قول تکذيبونکی دی.

### دلائل ورباندی دا دي:

١ -په (سورة الحجر: ٩) کې الله متعال فرمايي: {إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَٰفِظُونَ}. ژباړه: بېشکه مونږ دا قرآن نازل کړی دی او مونږ په خپله د دې ساتندويان يو.

٢ - امام ابن حزم رحمه الله فرمايي: فمن قال إن القرآن نقص منه بعد موت رسول الله ﷺ حرف، أو زيد فيه حرف، أو بدل منه حرف، أو أن هذا المسموع أو المحفوظ أو المكتوب أو المنزل ليس هو القرآن، أو قال: إن القرآن لم ينزل به جبريل ﷺ على قلب محمد ﷺ، أو أنه ليس هو كلام الله تعالى؛ فهو كافر، خارج عن دين الإسلام؛ لأنه خالف كلام الله عز وجل، وسنن رسول الله ﷺ وإجماع أهل الإسلام.

ژباړه: پس چا که وویلې چې قرآن یو حرف کم شوی وروسته د وفات د نبي ﷺ څخه او یا په کې کوم حرف زیات شوی او یا بدل شوی او یا دا چې دغه اوړېدل شوی محفوظ لیکل شوی او نازل شوی دا هغه قرآن نه دی او یا دا ووایي چې دغه قرآن جبریل د محمد ﷺ په زړه باندې نه دی نازل کړی، او یا دا ووایي چې دا د الله کلام نه دی نو دا کس کافر دی، د اسلام د دین څخه خارج دی، ځکه ده د الله د کلام د سنت د رسول الله ﷺ او د اجماع د اهل اسلام مخالفت وکړ.

(الدرة بما يجب اعتقاده: صـ ٢١٨، نقلا عن الموسوعة العقدية: ٤٨٩/٦، مراتب الاجماع: صـ١٧٤، الفصل فى الملل لابن حزم: ١٤١/٣).

٣- علامه ابن قدامة رحمه الله فرمایي: ولا خلاف بين المسلمين أجمعين أن من جحد آية، أو كلمة متفقا عليها أو حرفا متفقا عليه أنه كافر.

ژباړه: هېڅ خلاف نشته د ټولو مسلمانانو په دې کې چې که چا یو آیت او یا د یوې کلمې او یا یو حرف څخه چې اتفاق وي په هغې چې دا قرآن دی انکار وکړ، دا کس کافر دی.

(حكاية المناظرة فى القران مع بعض أهل البدعة: صـ٣٣).

## پنځمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې هېڅ انس او جن دا توان نه لري ولو كه ټول راغونډ شي داسې حال كې چې يو د بل مدد كوونكي وي د دې لپاره چې داسې قرآن جوړ كړي او يا د دې يو سورت جوړ كړي نو جوړ به يې نه كړى شي، او كه څوک د دې دعوى وكړي نو دا كس د الله تكذيب كوونكى دى چې په دې سره كافر ګرځي، كائنا من كان.

**دلائل په دې دا دي:**

١ - په (سورة الإسراء: ٨٨) كې الله متعال فرمايي:

{قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأْتُوا بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْءَانِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا}.

ژباړه: ورته ووايه (اى نبي!) كه انسانان او پيريان ټول لاسونه يو كړي چې د دغه قُرآن غوندې د كوم شي د راوړلو هڅه وكړي، نو را به يې نه شي وړلاى، كه څه هم ټول يو له بل سره مرسته هم وكړي.

٢ - په (سورة البقرة: ٢٣) كې الله متعال فرمايي:

{وَإِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ وَادْعُوا شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ}.

ژباړه: او كه تاسې د هغه كتاب (قرآن) په هكله شكمن ياست چې مونږ خپل بنده ته نازل كړى دى، نو د هغه غوندې يواځې يو سورت راوړئ،

او له الله پرته خپل(تول)مدد كوونكي هم راوبلئ، كه تاسې رښتينې ياست.

٣ - په (سورة يونس: ٣٨) كې الله فرمايي: {أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ}.

ژباړه: آيا دوی وايي چې پيغمبر دا په خپله د ځانه جوړ كړی دی؟ - ورته ووايه: كه تاسې په خپل دغه تور لګولو كې رښتينې ياست، نو د ده په څېر يو سورت تصنيف كړئ راوړئ؛ او له يوه الله پرته چې نور هر څوک راغوښتلای شئ، د مرستې لپاره يې راوغواړئ!

# احاديثو په باره کې زموږ عقيده.

## اوله عقيده:

زموږ دا عقيده ده چې صحيح او حسن احاديث دا په شريعت محمدي کې د قرآن څخه وروسته دويم نمبر اصل او دليل دی چې کله هم په صحيح او يا حسن اسناد او واسطې سره موجود شي، ځکه دا د رسول الله ﷺ قول، فعل او تقرير دی چې منل يې د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ طاعت کول دي، او څوک چې له دې انکار کوي دا د الله او د هغه د رسول ﷺ له طاعت څخه انکار کول دي چې دا کار کفر دی.

### دلائل وربانديې دا دي:

١ - (سورة ال عمران: ٣١ - ٣٢) کې الله متعال فرمايي: {قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِى يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ - قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَٰفِرِينَ}.

ژباړه: ور ته ووايه ای پيغمبره! که تاسې په رښتيا له الله سره مينه لرئ، نو زما د پيروی لاره غوره کړئ؛ الله به ستاسې سره مينه وکړي او ستاسې خطاوې به در وبخښي. هغه ډېر ښه بخښونکی او د رحمت څښتن دی. ورته ووايه: د الله او پيغمبر اطاعت وکړئ که بيا چېرته هغوی له دې څخه مخ وګرځوي نو ببشکه الله کفار نه خوښوي.

٢ - په (سورة النساء: ٦١) كې الله متعال فرمايي: {وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا}.

ژباړه: او كله چې هغو ته ويل كيږي چې راشئ، د هغه شي لوري ته چې الله نازل كړي دي، او راشئ، د پيغمبر لوري ته، نو ته به دغو منافقانو ته ګورې چې ستا لوري ته له راتګ څخه بيخي ځانونه ګوښه كوي.

دغه ډول په (١١٥) نمبر آيت كې فرمايي:

{وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيرًا}.

ژباړه: او څوک چې د پيغمبر دښمني وكړي وروسته له دې چې هغه ته هدايت ښكاره شي او د مؤمنانو له طريقې څخه پرته په كومه بله لاره لاړ شي، نو هغه به مونږ په هماغه لوري وخوځوو چې خپله هغه لوري ته ورګرځېدلی دی او جهنم ته به يې ننباسو چې خورا بد استوګنځای دی.

٣ - په (سورة الفرقان: ٢٧) كې الله متعال فرمايي:

{وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَٰلَيْتَنِى اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا}.

ژباړه: او هغه ورځ چې ظالم انسان به خپل لاسونه چيچي او وايي به: "كاشكې ما د پيغمبر ملګرتيا كړې وای"

٤- د ابو هريرة ﵁ څخه روايت دی هغه فرمايي: چې ببشكه رسول الله ﷺ وفرمايل:

كل أمتي يدخلون الجنة إلا من أبى»، قالوا: يا رسول الله، ومن يأبى؟ قال: «من أطاعني دخل الجنة ومن عصاني فقد أبى»

ژباړه: زما ټول امت به جنت ته داخل شي خو مګر که هغه چې انکار وکړي نو ورته وويل صحابه کرامو: اى د الله رسوله انکار به څوک کوى؟ هغه وفرمايل: چا چې زما طاعت وکړ دا جنت ته داخل شو او چا چې زما نافرماني وکړه نو ده يقينا انکار وکړ.

٥- جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دى هغه فرمايي چې: نبي ﷺ وفرمايل: فمن أطاع محمدا ﷺ فقد أطاع الله، ومن عصى محمدا ﷺ فقد عصى الله، ومحمد ﷺ فرق بين الناس.

ژباړه: پس چا چې د محمد ﷺ طاعت وکړ نو هغه يقينا د الله طاعت وکړ او چا چې د محمد ﷺ نافرماني وکړه نو ده يقينا د الله نافرماني وکړه او محمد ﷺ فرق راوستى په منځ د خلکو کې.

٦- د ابو موسى الأشعرى ﷺ څخه روايت دى، فرمايي: نبي ﷺ وفرمايل: إنمامثلي ومثل ما بعثني الله به، كمثل رجل أتى قوما فقال: يا قوم، إني رأيت الجيش بعيني، وإني أنا النذير العريان، فالنجاء، فأطاعه طائفة من قومه، فأدلجوا، فانطلقوا على مهلهم فنجوا،وكذبت طائفة منهم، فأصبحوا مكانهم، فصبحهم الجيش فأهلكهم واجتاحهم، فذلك مثل من أطاعني

فاتبع ما جئت به، ومثل من عصاني وكذب بما جئت به من الحق.

ژباړه: بېشکه زما او د هغه څه چې زه ورباندې الله رالیږلی یم د دې مثال داسې دی لکه یو سړی چې قوم ته راشي او ورته ووایي چې: ای قومه! ما په خپلو سترګو لښکر د دښمن ولیده او زه تاسو ته بربنډ وېرونکی یم نجات مونده کړئ نو یوې طایفې د قوم یې طاعت وکړي نو د شپې روان شي حرکت وکړي په خپل مسیر نو نجات مونده کړي او بله طائفه یې درواغجن وګڼي په خپل ځای پاتې شي نو سحر ورباندې دښمن حمله وکړي هلاک یې کړي او ختم یې کړي نو دا مثال د هغه چا دی چې زما طاعت وکړي او تابع شي د هغه څه چې ما ورباندې راتلل کړي او د هغه چې زما نافرماني وکړي او درواغجن وګڼي هغه حق چې ما ورباندې راتلل کړي (صحيح البخاري، باب: الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ، رقم الحديث: ٧٢٨٠ - ٧٢٨١ - ٧٢٨٣).

## دوهمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې د احاديثو ټول هغه کتابونه چې د دين امامانو او محدثينو ليکلي د هغې هر صحيح او حسن حديث قابل د قبول دى، عمل ورباندې واجب دى خو د امت د اجماع او ثابت اتفاق په وجه بيا صحيحين يعنې صحيح البخاري او صحيح مسلم ته هغه مقام او فضيلت حاصل دى چې هغه په صحت کې بل کتاب او د بل کتاب حديث ته نه دى ثابت.

### دليل په دې هغه اجماع د امت ده:

١- حافظ ابن حجر فرمايي:

والإجماع حاصل على أن لهما مزية فيما يرجع إلى نفس الصحة.

ژباړه: او اجماع حاصله ده په دې چې بېشکه د صحيحينو لپاره يو خاص برتري ده په دې چې هغه نفس صحت ته يې رجع کېږي

(نخبة الفكر وشرحه نزهة النظر: صـــ٥٠).

٢ – علامه ابن الصلاح فرمايي:

وكتاباهما أصح الكتب بعد كتاب الله العزيز.

ژباړه: د بخاري او مسلم کتابونه دا د ټولو کتابونو څخه ډېر صحيح کتابونه دي وروسته د الله د عزيز کتاب څخه .

(ومقدمة ابن صلاح: صـــ٢٩).

٣ - علامه نووي رحمه الله فرمايي: وهما أصح الكتب بعد القرآن، والبخاري أصحهما وأكثرهما فوائد، وقيل: مسلم أصح، والصواب الأول.وهما أصح الكتب بعد القرآن، والبخاري أصحهما وأكثرهما فوائد، وقيل: مسلم أصح، والصواب الأول.

ژباړه: او دا دواړه ډېر صحيح كتابونه دي وروسته د قرآن څخه او بخاري بيا ډېر صحيح دی دي دواړو کې او ډېر دی د فائدو په اعتبار سره او ويل شوي چې مسلم ډېر صحيح دی خو صحيح ړومبی خبره ده او دا دواړه د قرآن څخه وروسته صحيح كتابونه دي او بخاري بيا ډېر صحيح او د ډېرو فائدو والا دی او ويل شوي مسلم غوره دی خو غوره ړومبی خبره ده (تدريب الراوي: ٩٦/١).

## دریمه عقیده:

زمونږ دا عقيده ده چې كه يو حديث كې رسول الله ﷺ يو حكم او يا يو فيصله يو شان كړي وي او بل ځاى د امت علماء د دې برعكس حكم او فتوى وركوي د حديث مقابل كې به د دوى دغه حكم او فتوى مردوده ګڼلى شي، ولو كه بالفرض والتسليم ټول امت هم په دې عمل كوي دا به د دې په جواز دليل قطعا نشي ګرځېدلى!

بلكې دا به ښكاره هلاكت او تباهي وي.

**دلائل په دې باندې دا دي:**

١- په (سورة النساء: ١١٥) كې الله متعال فرمايي:

{وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيرًا}.

ژباړه: او څوک چې د پيغمبر دښمني وكړي وروسته له دې چې هغه ته هدايت ښكاره شي او د مؤمنانو له طريقې څخه پرته په كومه بله لاره لاړ شي، نو هغه به مونږ په هماغه لوري وخوځوو چې خپله هغه لوري ته ورګرځېدلى دى او جهنم ته به يې ننباسو چې خورا بد استوګنځاى دى.

٢ - دغه ډول په (سُورَةُ النِّسَاء: ٥٩) كې الله متعال فرمايي:

{يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِى الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِى شَىْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ

الْءَاخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا}.

ژباړه: ای مؤمنانو! د الله طاعت وکړئ او د رسول طاعت وکړئ او د هغو کسانو چې ستاسې څخه د امر خاوندان وي، بیا که ستاسې تر منځ په کومه چاره کې شخړه پیښه شي؛ نو هغه د الله او رسول لوري ته محوله (وړاندې) کړئ، که تاسې په رښتیا سره پر الله او د اخرت په ورځ ایمان لرئ، همدا د کار یوه سمه طریقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده.

۳- په (سورة النور: ۶۳) کې الله متعال فرمايي: {فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِۦٓ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ}.

ژباړه: پس باید ووېرېږي هغه خلک چې مخالفت کوي د امر د پیغمبر له دې چې په کومه فتنه کې اخته نشي یا دردناك عذاب پرې رانشي.

۴ - د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی هغه فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمایل: لا تمنعوا إماء الله أن يصلين في المسجد» فقال ابن له: إنا لنمنعهن، فقال: فغضب غضبا شديدا، وقال: أحدثك عن رسول الله ﷺ وتقول: إنا لنمنعهن؟

ژباړه: مه منع کوئ وینځې د الله (زنانه) له دې چې په مسجدونو کې لمونځ وکړي نو د هغه ځوی وویلي مونږ به یې خامخا منع کوو نو هغه ته ډېر سخت په غصه شو او ورته یې وویل: زه درته د رسول الله ﷺ

څخه حديث بيانوم او ته وايې چې زه يې خامخا منع کوم؟

٥ - عبد الله بن مغفل ﷺ ناست وو او خوا کې ورسره وراره ناست وو نو هغه يو وړه ګيټۍ (کاڼی) د ګوتو منځ کې ونيوه او وار يې کړه نو هغه منع کړ او ورته يې وويل: چې رسول الله ﷺ له دې څخه منع کړې او فرمايلي يې دي چې:

«إنها لا تصيد صيدا، ولا تنكي عدوا، وإنها تكسر السن، وتفقأ العين»

دې باندې نه ښکار کيږي او نه وربانديې دښمن دردمند کيږي خو په نا څاپي ډول (مجلس کې) د چا غاښ ماتوي يا يې سترګه اوباسي، نو د ده وراره بيا دغه کار وکړ نو ده ورته وفرمايل:

أحدثك أن رسول الله ﷺ نهى عنها، ثم عدت تخذف، لا أكلمك أبدا.

ژباړه: زه درته حديث بيانوم چې رسول اللهﷺله دې څخه منع کړې او ته بيا هم دې کار ته راوګرځيدې زه به تا سره هيڅکله خبرې ونه کړم.

٦ - عبادة بن الصامت الأنصاري ﷺ د معاوية ﷺ سره د روم په ځمکه کې غزا ته لاړه نو چې هغه وکتل خلک د سرو زرو توکړی په ديناررونو او د سپينو زرو توکړی په دراهمو باندې اخلي نو ده وفرمايل: ای خلکو تاسو خو سود خورئ، ما د رسول اللهﷺڅخه اوريدلي چې هغه فرمايلي:

لا تبتاعوا الذهب بالذهب، إلا مثلا بمثل، لا زيادة بينهما ولا نظرة.

ژباړه: تاسو سره په سرو مه خرڅوئ مګر مثل په مثل چې نه زيادت وي په دې کې يو په بل او نه قرض، نو معاويه ﷺ ورته وفرمايل: اى ابو وليده ما ته دا سود نه ښکاري مګر هله سود وي چې کله په کې قرض راشي نو عبادة ورته وفرمايل: زه درته د رسول اللهﷺ حديث بيانوم او ته د خپلې رأيي نه خبره کوې که چېرته زه له دې غزوې څخه را واپس شوم نو زه به له تا سره په هغه ځمکه ونه اوسم په کومه چې ستا حکومت وي نو چې کله له غزا څخه واپس شو نو مدينې ته لاړه، عمر بن الخطاب: ﷺ چې وليده ورته يې وفرمايل: اى ابو وليده! څه شي راوستى يې نو ټوله قيصه يې ورته وکړه نو عمرﷺ ورته وفرمايل:

ارجع يا ابا الوليد إلى أرضك، فقبح الله أرضا لست فيها وأمثالك، وكتب إلى معاوية: لا إمرة لك عليه، واحمل الناس على ما قال، فإنه هو الأمر.

ژباړه: واپس لاړ شه ابو وليده خپلې ځمکې ته الله دې هغه ځمکه بدرنګه کړي چې ته او يا تا په شان خلک په کې نه وي او معاويه ته يې خط وليکه چې ستا په ده باندې هيڅ امر نه چليږي او خلک هغه کار ته راوګرځوه کوم چې عباده ويلي دي ځکه همدا دين دى.

٧- عن ابي بكر .... لست تاركا شيئا، كان رسول اللهﷺبه إلا عملت به، فإني أخشى إن تركت شيئا من أمره أن أزيغ.

ژباړه: زه نه یم پرېښودونکی د هغه شي چې رسول الله ﷺ په عملي کولو مګر دا چې زه به هم ورباندې عمل کوم زه وېرېږم له دې چې که زه د هغه د دین څخه څه شی پرېږدم نو کوږ به شم (سنن ابن ماجه، باب: تعظيم حديث رسول الله ﷺ، والتغليظ على من عارضه، رقم الحديث: ۱۶ - ۱۷ - ۱۸).

۴ - (سنن ابی داود، باب: ما جاء في خروج النساء إلى المسجد؛ رقم الحديث: ۵۶۸)، (قواعد التحديث: صــ۳۵۴) (صحيح البخاري، فرض الخمس، حديث رقم: ۳۰۹۳).

## څلورمه عقیده:

زمونږ دا عقیده ده چې جبرئیل علیه السلام څنګه ﷺ قرآن باندې راتلل کړي داسې یې په سنت باندې هم راتلل کړي، نو لهذا چې کوم شی په احادیثو کې د رسول الله ﷺ په ژبه حلال شوي او یا حرام شوي وي دا به داسې حلال او یا حرام ګڼلی شي لکه څنګه چې په قرآن کې یو شی حلال او یا حرام ګرځول شوی وي.

### دلائل په دې باندې هغه دا دي:

۱ - په (سورة الحشر: ۷) کې الله متعال فرمايي: {وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ}.

ژباړه: او هغه څه چې پیغمبر ﷺ تاسې ته درکوي، هغه واخلئ؛ او له څه شي څخه چې تاسې منع کوي، له هغه څخه منع شئ، د الله څخه ووېرېږئ، الله سخت سزا ورکوونکی دی.

٢ - په (سورة النحل: ٤٤) کې الله متعال فرمايي: {وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ}.

ژباړه: اومونږ دغه ذکر (قرآن) پر تا نازل کړی دی چې ته خلکو ته هغه ښوونه تشریح او توضیح کړې چې د هغو لپاره نازل کړی شوېده، او چې خلک (په خپله هم) غور او فکر وکړي.

٣- په (سُورَةُ النّحل: ٦٤) کې الله متعال فرمايي: {وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوا فِيهِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ}.

ژباړه: او مونږ دغه کتاب پر تا له دې کبله نازل کړی دی چې ته هغه اختلافونه، دوی ته په حقیقي بڼه روښانه کړې چې دوی په کې اخته شوي دي، دغه کتاب د لارښود او رحمت په توګه د هغو خلکو لپاره نازل شوی دی چې ایمان راوړي.

٤- د مقدام بن معد یکرب الکندي رضي الله عنه څخه روایت دی فرمايي: چې بېشکه رسول الله ﷺ وفرمایل:

يوشك الرجل متكئا على أريكته، يحدث بحديث من حديثي، فيقول: بيننا وبينكم كتاب الله عز وجل، فما وجدنا فيه من حلال استحللناه، وما وجدنا

فيه من حرام حرمناه، ألا وإن ما حرم رسول الله ﷺ مثل ما حرم الله.

ژباړه: زر دی چې یو سړی به په خپل پالنګ تکیه وهلی ناست وي زما یو حدیث به بیان کړی شي نو ووبه وايي: زمونږ او ستاسو ترمنځه به د الله عزوجل کتاب کافي وي بس چې دې کې څه حلال وي هغه به حلال ګڼو او څه چې په کې حرام پیدا کړو هغه به حرام ګڼو, خو خبردار! هغه څه چې رسول الله ﷺ حرام کړي هغه به داسې حرام وي لکه الله چې حرام کړي وي

(سنن ابن ماجه، باب: تعظيم حديث رسول الله ﷺ، والتغليظ على من عارضه، رقم الحديث: ١٢)

٥- ابوهريرة اوزيد بن خالد الجهني فرمايي: .... رسول الله ﷺ وفرمايل: «والذي نفسي بيده، لأقضين بينكما بكتاب الله، الوليدة والغنم رد، وعلى ابنك جلد مائة، وتغريب عام، واغد يا أنيس إلى امرأة هذا، فإن اعترفت فارجمها»، قال: فغدا عليها، فاعترفت فأمر بها رسول الله ﷺ فرجمت.

ژباړه: قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه لاس کې دی زه به ضرور بالضرور ستاسو ترمنځه د الله په کتاب فیصله کوم وینځه او ګډې دا به واپس ورکړېځ (د هلک پلار ته) او ستا په ځوی سل (١٠٠) دورې وهل او یو کال له علاقې شړل دي او ته سحر ای اونيسه د دې سړي ښځې

ته ورشه که اعتراف یې وکړ نو رجم یې کړه نو هغه سحر وراغی نو هغې اعتراف وکړ نو بیا رسول الله ﷺ امر وکړ او رجم یې کړه

(صحيح مسلم، باب: من اعترف على نفسه بالزنى، رقم الحديث: ١٦٩٧).

مزید وګورئ: (سنن الدارمی باب: السنة قاضية على كتاب الله تعالى، رقم الحديث: ٦٠٦ - ٦٠٨).

## پنځمه عقیده:

زموږ دا عقیده ده چې حدیث خبر واحد وي او که متواتر دا به حجت وي دا قابل د قبول وي عمل به وربانديې واجب وي، ځکه قطعا د رسول الله ﷺ څخه داسې حدیث نه دی ثابت چې هغه د الله د کتاب مخالف وي مګر یا دا چې هغه به یقیني منسوخ وي،او یا به صحیح نه وي؛ ځکه مونږ د نبي کریم ﷺ احادیث په لاندې څو قسمه ګڼو:

- اول: یا به د مبهم تفسیر او تفصیل وي او یا به د قرآن اجمال وي؛ لکه د لمونځ، زکاة او حج وغیره احکامو غوندې چې دا قرآن مبهم ذکر کړي خو تفصیل یې احادیثو کې شوی.
- دوهــم: یا به تقیید وي د مطلق د قرآن له، لکه د مطلّقې ښځې د زوج ثانی سره د نکاح کولو دغه اطلاق احادیثو کې په جماع او رضا د ولي سره مقید شوی.

عائشة رضي الله عنها فرمايي: د رفاعة القرظي ښځه نبي ﷺ ته راغله ورته ويې فرمايل: زه د رفاعة سره وم هغه طلاق راکړ طلاق مې پوره شو نو ما بيا عبد الرحمن بن الزبير سره نکاح وکړه خو د هغه سره لکه د جامو څنډه داسې(ذکر)دی (يعنې جماع نشي کولی) نو نبي ﷺ ورته وفرمايل:

«أتريدين أن ترجعي إلى رفاعة؟ لا، حتى تذوقي عسيلته ويذوق عسيلتك»

ژباړه: ته اراده لرې چې واپس رفاعه ته لاړه شې نه دا تر هغې نشي کېدی تر څو ته د هغه او هغه ستا خواږه ونه څکي.

(صحيح البخاري، رقم الحديث: ۲۶۳۹).

- دريـــم: يا به په کې تخصيص د عام قرآن شوي وي لکه: "فاقرؤا ماتيسرلکم" چې دا په احاديثو کې په سورة الفاتحې سره خاص شوی چې "لاصلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الکتاب"

په دې مزيد دلائل: مخکې د ذکر شوي څلورم نمبر عقيدې دلائل دي هغه ملاحظه کړئ.

دغه ډول د (سورة النجم: ۳ - ۴) نمبر آيتونه دي چې الله متعال فرمايي:

{وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ (-) إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ}.

ژباړه: او دا نبي له ځان نه خبرې نه کوي، دا (قُرآن) خو يوه وحې ده چې پر هغه نازلېږي.

دغه ډول نور ټول د احاديثو کتابونه وربانديې دلائل دي.

# د صحابه کرامو په باره کې زموږ عقيده.

## اوله عقيده:

زموږ دا عقيده ده چې د رسول الله ﷺ صحابه کرام ټول په ټوله عدول او د دې امت غوره او افضل أولياء او قابل د اقتداء دي، بيا دوی ټولو کې افضل او د خلافت حقدار ابوبکر او بيا عمر او بيا عثمان او بيا علي ﷺ اجمعين دي، همدوی خلفاء راشدين او أئمه مهديين دي.

**په دې دلائل دا دي:**

١- په (سورة البقرة: ١٣٧) کې الله متعال فرمايي:

{فَإِنْ ءَامَنُوا بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ اهْتَدَوا وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِى شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ}.

ژباړه: بيا که هغوی هماغسې ايمان راوړ لکه چې تاسې (صحابه کرامو) راوړی دی، نو سمه لار يې موندله؛ او که له هغه څخه مخ واړوي، نو ښکاره خبره ده چې هغوی په خپلې توب (شقاوت) کې نښتي دي، له دې امله ډاډه اوسئ چې د هغو په مقابل کې الله ستاسې د ملاتړ لپاره کافي دی، الله هر څه اوري او په ټولو شيانو پوهيږي.

۲- په (سورة الفتح: ۲۹) کې الله متعال فرمايي:

{مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ ۖ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوٰنًا ۖ سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ۚ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِى التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِى الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْـَٔهُۥ فَـَٔازَرَهُۥ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوقِهِۦ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ۗ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًۢا}.

**ژباړه:** محمد د الله پيغمبر دی؛ او کوم کسان چې له هغه سره ملګري دي، هغوی پر کافرانو سخت او په خپلو منځو کې خواخوږي دي. ته چې کله هغوی ګورې نو په رکوع او سجده، او د الله د فضل او د هغه د خوشۍ په طلب کې به يې بوخت مومې، د دينداری نښې نښانې د هغو په مخونو کې د سجدو د اغيز له امله موجودې دي، (چې په هغه سره هغوی ببل پيژندل کيږي)، دا اوصاف هغه اوصاف دي چې مثالونه يې په تورات او انجيل کې بيان شوي دي، داسې چې ګواکې يو کښت دی چې لومړی خپلې ځانګې راباسي، بيا يې هغه ته قوت او وده ورکړه، بيا هغه مخ په پخېدو شو، بيا هغه پر خپلې تنې باندې اودرېدې، هغه کروندګر خوشحالوي تر څو چې کافران د هغو په تقويې او سمسورتيا باندې له غصې وسوځي، د دغې ډلې خلک چې ايمان يې راوړی دی او نېک عملونه يې کړيدي، الله د بخښنې او لوی اجر وعده ورسره کړېده.

٣ - په (سورة الفتح: ١٨) كې الله متعال فرمايي:

{لَّقَدْ رَضِىَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِى قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَٰبَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا}.

ژباړه: الله له مؤمنانو څخه خوشحاله شو، کله چې هغوی له ونې لاندې ستا سره بيعت کاوه، د هغو د زړونو حال هغه ته معلوم دی، لدې امله يې پر هغو ډاډينه نازله کړه او هغو ته يې په انعام کې نژدې برى ورکړ.

۴ - د ابن عمر رضي الله عنهما، څخه روايت دی هغه فرمايي:

«كنا نخير بين الناس في زمن النبيﷺ فنخير أبا بكر، ثم عمر بن الخطاب، ثم عثمان بن عفان رضي الله عنه »

ژباړه: مونږ به د نبي ﷺ په زمانه کې خلک غوره کول نو مونږ به اول ابوبکر بيا عمر بن الخطاب او بيا عثمان بن عفان غوره کولو.

۵- محمد بن جبير بن مطعم، د خپل بلار جبير نه روايت کوي، فرمايي:

أتت امرأة النبي ﷺ، فأمرها أن ترجع إليه، قالت: أرأيت إن جئت ولم أجدك؟ كأنها تقول: الموت، قال ﷺ: «إن لم تجديني فأتي أبا بكر»

ژباړه: يوه ښځه نبي ﷺ ته راغله نو نبي ﷺ ورته امر وکړ چې بيا ورته راشي نو هغې ورته وفرمايل: که زه راشم او تاسو مونده نه کړم يعنې وفات يې، نو نبي ﷺورته وفرمايل: که ما مونده نه کړئ نو بيا ابو بکر ته راشه.

(صحيح البخاري، باب: فضل أبي بكر بعد النبي ﷺ؛ رقم الحديث: ٣٦٥٥ - ٣٦٥٩).

٦ - ابن مسعود ﵁ فرمايي:

من كان مستنا فليستن بمن قد مات، أولئك أصحاب محمد ﷺ ، كانوا خير هذه الأمة، أبرها قلوبا، وأعمقها علما، وأقلها تكلفا، قوم اختارهم الله لصحبة نبيه ﷺ، ونقل دينه، فتشبهوا بأخلاقهم وطرائقهم، فهم كانوا على الهدي المستقيم.

ژباړه: څوک چې د چا اقتدا کوي نو هغه دې د هغه چا اقتدا وکړي چې هغه وفات وي او هغه دغه د محمد صلى الله عليه وسلم ملګري دي دوی د دې امت غوره خلک وو، د زړونو په اعتبار سره نېکان وو، د علم په اعتبار سره ژور علم والا وو، د تکلف په اعتبار سره د کم تکلف والا وو دا داسې يو قوم وو چې الله د خپل نبي د ملګرتيا او د دين د نقلولو لپاره غوره کړه، نو د هغوی په اخلاقو او کړنو باندې ځان مشابه کړئ ځکه دوی په برابر هديت باندې وو.

٧- عبد الله بن مسعود ﵁ فرمايي: «إن الله تعالى اطلع في قلوب العباد، فاختار محمدا ﷺ، فبعثه برسالته، وانتجبه بعلمه،ثم نظر في قلوب الناس بعد، فاختار له أصحابا، فجعلهم أنصار دينه، ووزراء نبيه ﷺ، فما رآه

المؤمنون حسنا، فهو عند الله حسن، وما رآه المؤمنون قبيحا، فهو عند الله قبيح.

ژباړه: بېشکه الله تعالی د بنده ګانو زړونه وکتل نو محمد ﷺ یې غوره کړ نو راوېې لېږه په خپل رسالت باندې او غوره یې کړ په خپل علم باندې بیا یې له هغې وروسته یې د خلکو زړونه وکتل نو هغه ( نبي) ته یې ملګري غوره کړل نو هغوی یې د خپل دین مدد کوونکي او د خپل نبي وزیران وټاکل نو هغه څه چې مؤمنانو (صحابه کرامو) ښه وګڼل هغه به د الله په نزد ښه وي او څه چې مؤمنانو (صحابه کرامو) بد وګڼل هغه به د الله به نزد بد وي.

٥ -(شرح السنة للبغوي, باب: رد البدع والهوی: ١/٢١٤ - ١/٢١٥)

## دوهمه عقیده:

زمونږ دا عقیده ده چې ټول امت د صحابه کرامو بلکې د یو صحابي مقام او مرتبې ته نشي رسیدلی، صحابه د دین او شریعت په رارسولو کې مخلصین او په امت لوی محسنین ګڼو او احترام او ادب یې فرض او واجب ګڼو او په حق کې یې هر قسم توهین او ګستاخي حرامه او ناجائز ګڼو.

### په دې دلائل:

١ - مخکې دې باب کې د ړومبی عقیدې دلائل لکه: د سورة الفتح: (٢٩) ١٨) نمبر ذکر شوي آیتونه او نور اقوال او احادیث وربادندې هم دلائل دي.

٢- د (سورة التوبة: ١٠٠) پدې آیت کې الله متعال فرمایي:

{وَالسَّٰبِقُونَ ٱلْأَوَّلُونَ مِنَ ٱلْمُهَٰجِرِينَ وَٱلْأَنصَارِ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحْسَٰنٍ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا۟ عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى تَحْتَهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ}.

ژباړه: او مخکې کیدونکي ایمان ته ړومبني د مهاجرینو او انصارو څخه او هغه کسان چې وروسته له نیکۍ او ربښتینولۍ سره په هغو پسې راغلل؛ الله له هغو څخه خوښ او هغوی د الله څخه خوښ شول، الله د هغو لپاره داسې باغونه (جنتونه) تیار کړیدي، چې لاندې به یې ویالې

بهېږي او هغوی به پکې د تل لپاره اوسېږي، همدا ډېر لوی بریالیتوب دی.

۳ - په (سُورَةُ الأحزَاب: ۲۲) کې الله متعال فرمايي:

{وَلَمَّا رَءَا الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّآ إِيمَٰنًا وَتَسْلِيمًا}.

ژباړه: او کله چې رښتينو مؤمنانو (حال په هغه وخت کې دا وو) چې کله يې يرغلګر وليدل، نو ويې ويل: "دا هماغه څه دي چې الله او د هغه رسول زمونږ سره د هغه وعده کړې وه، د الله او د هغه د رسول خبره بيخي رښتيا وه، دغې پېښې د هغو ايمان او غاړه اېښودل لا زيات کړل.

۴- په (سورة الأحزاب: ۲۳) کې الله متعال فرمايي:

{مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَٰهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُۥ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا}.

ژباړه: له مؤمنانو څخه ځينې داسې شخصيتونه شته چې له الله سره يې کړې ژمنه رښتيا کړې ده: له هغو څخه چا خپل نذر پوره کړ او څوک د وخت راتلو ته انتظار باسي، هغوی پخپله کړنلاره کې هېڅ تبديلي را نه وستله.

## درېمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې د صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين سره محبت كول د ايمان او د هغوی سره بغض كول د نفاق نښه ده، څوك چې د هغوی سره بغض كوي مونږ د هغوی سره بغص كوو چې څوك ورسره عداوت كوي هغوی خپل دښمنان ګڼو او چې څوك يې تكفير كوي هغه كافر، قتل يې واجب او مال يې غنيمت ګڼو.

**دلائل ورباندې دا دي:**

١ - أنس ﷺ فرمايي: ما د نبي ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمايل:

آية الإيمان حب الأنصار، وآية النفاق بغض الأنصار.

ژباړه: د ايمان نښه د انصارو صحابه كرامو سره محبت كول دي او د منافقت نښه د انصارو سره بغض كول دي.

(صحيح البخاري، باب: علامة الإيمان حب الأنصار، رقم الحديث: ١٧).

٢ -براء رضي الله عنه فرمايي: ما د نبي ﷺ څخه واورېدل او يا يې وفرمايل: چې نبي ﷺوفرمايل: «الأنصار لا يحبهم إلا مؤمن، ولا يبغضهم إلا منافق، فمن أحبهم أحبه الله، ومن أبغضهم أبغضه الله.

ژباړه: انصارو سره محبت نه كوي مګر مؤمن او بغض نه كوي د دوی سره مګر منافق نو بس چا چې د دوی سره محبت وكړ الله دې د دوی سره محبت وكړي او چا چې د دوی سره بغض وكړ الله دې د دوی سره

بغض وكړي. (صحيح البخاري باب: حب الأنصار، رقم الحديث: ٣٧٨٣)
دغه ډول وګورئ: (صحيح مسلم، باب: الدليل على أن حب الأنصار وعلي ﷺ من الإيمان وعلاماته، وبغضهم من علامات النفاق، رقم الحديث: ١٢٨ - ١٢٩- ١٣٠).

٣ - ابو سعيد الخدري ﷺ فرمايي: نبي ﷺ وفرمايل: لا تسبوا أصحابي، فلو أن أحدكم أنفق مثل أحد، ذهبا ما بلغ مد أحدهم، ولا نصيفه.
ژباړه: زما صحابه وو ته کنځلې مه کوئ که يو کس ستاسو څخه د احد د غر په مقدار سره زر خرچ کړي نو بيا به هم د هغوى د يوې لپې او يا نيمې لپې ته هم (په اجر کې) ونه رسيږي.
(صحيح البخاري؛ رقم الحديث: ٣٦٧٣، باب: قول النبي ﷺ: «لو كنت متخذا خليلا»)مزيد وګورئ: (كتاب النهي عن سب الأصحاب وما فيه من الإثم والعقاب: صـ/٢٣).

٤ - (أخبار أصبهان:١/ ٣٢٤)

٥ - (الشرح والإبانة: صـــ١٦٠صـــ١٦١ صـــ١٦٢).

٦ - (المحلى، باب: مسألة سب نبيا او رسولا او الله تعالى او ملكا :١٢/ ٤٤٠)

٧ - (الشفاء للقاضي:٢/ ٦٤٧)

## څلورمه عقيده:

د صحابه کرامو ترمنځه واقع شوي شخړو او مشاجرو کې هغوی مجتهدین ګڼو او د دوی ترمنځه لکه څنګه چې زمونږ توري د یو جانب مقابل کې رب ساتلي، داسې خپلې ژبې هم ساتو او دې باب کې د ملامت او غیر ملامت علم الله ته سپارو، ځکه دې باب کې د یو مدح او د بل ذم دا هغوی ته د ښکنځلو او بدي په معنی دي، او دا کار حرام او ممنوع دی.

### دلائل وربانديې دا دي:

١ - په (سورة الحشر: ١٠) کې الله متعال فرمايي:

{وَالَّذِينَ جَآءُو مِن بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَٰنِ وَلَا تَجْعَلْ فِى قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ}.

ژباړه: او هغه چې له دغو مخکنیو څخه وروسته راغلي دي، هغه کسان چې وايي: ای زمونږ ربه! مونږ او زمونږ ټولو هغو ورونو ته بخښنه وکړه، چې زمونږ څخه مخکې يې ايمان راوړی دی؛ او زمونږ په زړونو کې د مؤمنانو لپاره هیڅ کینه مه اچوه، ای زمونږ ربه! ته ډیر مهربان او رحم کوونکی يې.

٢ - عبد الله بن مغفل ﷺ څخه روايت دی فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

الله الله في أصحابي لا تتخذوهم غرضا بعدي، فمن أحبهم فبحبي أحبهم، ومن أبغضهم فببغضي أبغضهم، ومن آذاهم فقد آذاني، ومن آذاني فقد آذى الله، ومن آذى الله فيوشك أن يأخذه.

ژباړه: د الله لپاره د الله لپاره زما صحابه نښانه مه ګرځوئ زما نه وروسته پس چا که محبت وکړ د دوی سره نو دا يې ورسره زما د محبت له وجې وکړ، او چا که بغض وکړ د دوی سره نو دا يې ما سره د بغض له کبله وکړ، او چا چې دوی ته تکليف ورساوه نو هغه بېشکه ماته تکليف ورساوه او چا چې ماته تکليف راورساوه نو ده يقينا الله ته تکليف ورساوه او څوک چې الله ته تکليف ورسوي نو زر دی چې راوبه يې نيسي. (سنن الترمذی، باب: فی من سب اصحاب النبي ﷺ، رقم الحديث: ٣٨٦٢).

٣ - عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي: مونږ باندې رسول الله ﷺ راووت او ويې فرمايل: "ألا لا يبلغني أحد منكم عن أحد من أصحابي شيئا، فإني أحب أن أخرج إليكم وأنا سليم الصدر.

ژباړه: خبردار! تاسو کې دې يو هم ماته زما د صحابه وو څخه څه (بدي او شکوه) نه رارسوي پس زه دا خوښه ګڼم چې زه ستاسو له منځه لاړ شم (اخرت ته) او زما سينه روغه وي (خفه درڅخه نه يم).

(البيهقي في الكبرى، رقم الحديث: ١٦٦٧٥).

۴ - ابو بردة د خپل پلار څخه روايت کوي, فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: أصحابي أمنة لأمتي، فإذا ذهب أصحابي أتى أمتي ما يوعدون.

ژباړه: زما صحابه زما امت ته د امن ډاډ دی پس کله چې زما صحابه لاړ شي نو زما امت ته به هغه څه راشي چې د څه ورسره وعدې شوي دي.

۵ - عمران بن حصين رضي الله عنه فرمايي: رسول الله ﷺ: «خير الناس قرني ثم الذين يلونهم، ثم الذين يلونهم، ثم الذين يلونهم»

ژباړه: غوره خلک هغه زما قرن والا دي بيا ورپسې (دويمه درجه) چې دوی ته نزدې وي بيا ورپسې (دريمه درجه) چې دوی ته نزدې وي بيا ورپسی (څلورمه درجه) چې دوی ته نزدې وي.

(مصنف ابن ابى شيبة، باب: ماذكر فى الكف عن اصحاب النبي ﷺ رقم الحديث۳۲۴۰۶ - ۳۲۴۱۰) مزيد وګورئ:

۵ -فضائل الصحابة لأحمد بن حنبل، رقم الحديث :۸ - ۱۰ – ۱۱)

## پنځمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې په صحابه کرامو کې چې د کومو معينو اشخاصو باره کې د جنت زېرى په دنيا کې د رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه اورول شوى هغوى ته په جنتيت ګواهي ورکوو چې د هغې ځخه هغه عشرة مبشرة دي يعنې هغه لس کسان چې زېرى ورکړى شوى دى لکه:

١. ابوبکر رضي الله عنه .
٢. عمر رضي الله عنه.
٣. عثمان بن عفان رضي الله عنه.
٤. علي بن ابي طالب رضي الله عنه
٥. طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه.
٦. زبير بن عوام رضي الله عنه.
٧. عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه.
٨. سعيد بن زيد رضي الله عنه.
٩. سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه.
١٠. ابوعبيدة بن ابى جراح رضي الله عنه.

دغه ډول هغه صحابه کرام چې هغوى د رسول الله ﷺ سره په حديبيه کې د ونې لاندې بيعت کړى وو د دوى باره کې هم د جنت د دخول او د اور ځخه د نجات زېري نقل دي. دغه ډول عام او تام بخښنه د بدر د غازيانو باره کې هم زمونږ د عقيدې برخه ده.

**په دې دلائل دا دي:**

١ -جابر بن عبد الله، رضي الله عنهما فرمايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل: «من يصعد الثنية، ثنية المرار، فإنه يحط عنه ما حط عن بني إسرائيل» قال: فكان أول من صعدها خيلنا، خيل بني الخزرج، ثم تتام الناس، فقال رسول الله ﷺ: «وكلكم مغفور له، إلا صاحب الجمل الأحمر» فأتيناه فقلنا له: تعال، يستغفر لك رسول الله ﷺ فقال: والله لأن أجد ضالتي أحب إلي من أن يستغفر لي صاحبكم، قال وكان رجل ينشد ضالة له.

ژباړه: څوک چې د مرار په کنډو وخېژي داسې به ترېنه ګناهونه ورژېږي لکه د بني اسرائيلو څخه چې رژېدلي وو نو ړومبی چې به دې کنډو پورته شو هغه زمونږ اسونه وو د بني خزرج اسونه وو بيا د هغې نه بعد ټول خلک راپورته شو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: دې ټولو ته مغفرت وکړی شو مګر د سور اوښ خاوند ته (مغفرت ونشو) مونږ راغلو هغه ته مو وويل: راشه چې نبي ﷺ درته د الله څخه بخښنه وغواړي، هغه وويل: قسم په الله چې زه خپل اوښ پيدا کړم دا ما ته د دې نه غوره ده چې ستاسو دا ملګرى (نبي ﷺ) راته بخښنه وغواړي، او دا سړى وو چې د خپل ورک شوي اوښ تالاش يې کولو.

(صحيح مسلم، كتاب صفات المنافقين وأحكامهم رقم الحديث: ٢٧٨٠).

٢ -د علي ﷺ څخه روايت دی ... د حاطب بن ابی بلتعه ﷺ باره کې رسول الله ﷺوفرمايل: إنه قد شهد بدرا، وما يدريك لعل الله اطلع على أهل بدر فقال: اعملوا ما شئتم، فقد غفرت لكم.

ژباړه: بېشکه دا بدر ته حاضر شوی او ته څه خبر کړې يقينا الله د بدر والاو ته راښکاره شو ورته ويې فرمايل: کوئ چې څه مو خوښه وي يقينا ما تاسو ته بخښنه کړېده.

(صحيح البخاري, باب: من فضائل أهل بدر ﷺ وقصة حاطب بن أبي بلتعة، رقم الحديث::٢٤٩٥، باب: الجاسوس، رقم الحديث: ٣٠٠٧، باب: فضل من شهد بدرا، رقم الحديث: ٣٩٨٢ – ٣٩٨٣).

# د څلور امامانو باره کې زموږ عقيده

## اوله عقيده:

زموږ دا عقيده ده چې موږ مشهور څلور واړه امامان: امام ابو حنيفه رحمه الله، امام مالک ﵀ ، امام محمد بن ادريس الشافعی ﵀ او امام احمد بن حنبل ﵀ دا د امت د سلفو څخه دي او إن شاء الله تعالى غوره مسلمانان او اوچت علماء او مجتهدين دي، دوی د کتاب او سنت څخه ډېری مسائل مستنبط کړي، د دوی چې کوم مسائل، فتاوي او اجتهادات د کتاب او سنت سره موافق دي هغه منو انکار ورڅخه نه کوو، او په دې ورته د رب له لوري د دوه اجرونو اميد ساتو او کوم چې مخالف دي هغه د دوی اجتهادي خطاء ده چې په هېڅ د دې منل لازم نه ګڼو، سره د احترام د دې أئمه ؤ او په دې کې هم ورته د رب څخه د يو اجر اميد لرو، په دې سره د دوی تکفير يا تفسيق او يا هم توهين کول دا حرام ګڼو.

### په دې دلائل دا دي:

١ -عمرو بن العاص ﵁ څخه روايت دی فرمايي: چې ده له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چې هغه وفرمايل:

«إذا حكم الحاكم فاجتهد ثم أصاب فله أجران، وإذا حكم فاجتهد ثم أخطأ فله أجر»

**ژباړه:** چې کله حاکم (حکم لګوونکی) يو فيصله وکړي او په دې کې ښه کوشش وکړي او بيا په هغې کې حق ته ورسيږي نو ده ته دوه اجره دي او که حکم ولګوي کوشش وکړي خو خطاء شي نو بيا ورته يو اجر دی. (صحيح البخاري، باب: أجرالحاکم اذا جتهد فاصاب أو اخطاء، رقم الحديث: ۶۸۲۹).

۲ -عبادة بن الصامت الأنصاري ﷺ د معاويه ﷺ سره د روم په ځمکه کې غزا ته لاړه نو يې هغه وکتل خلک د سرو زرو توکړی په ديناروںو او د سپينو زرو توکړی په دراهمو باندې اخلي نو ده وفرمايل: ای خلکو! تاسو خو سود خورئ، ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چې هغه فرمايلي: لا تبتاعوا الذهب بالذهب، إلا مثلا بمثل، لا زيادة بينهما ولا نظرة.

ژباړه: تاسو سره په سرو مه خرڅوئ مګر مثل په مثل چې نه زيادت وي په دې کې يو په بل او نه قرض، نو معاويه ﷺ ورته وفرمايل: ای ابو وليده ماته دا سود نه ښکاري مګر هله سود وي چې کله په کې قرض راشي، نو عبادة ورته وفرمايل: زه درته د رسول الله ﷺ، حديث بيانوم او ته د خپلې رأيې نه خبره کوې که چېرته زه له دې غزوې څخه راواپس شوم نو زه به له تاسره په هغه ځمکه ونه اوسم په کومه چې ستا حکومت

وي نو چې كله له غزا څخه واپس شو نو مديني ته لاړه عمر بن الخطاب ﵁ چې وليده ورته يې وفرمايل: اى ابو وليده څه شي راوستى يې نو ټوله قيصه يې ورته وکړه، نو عمر ﵁ ورته وفرمايل:

ارجع يا ابا الوليد إلى أرضك، فقبح الله أرضا لست فيها وأمثالك، وكتب إلى معاوية: لا إمرة لك عليه، واحمل الناس على ما قال، فإنه هو الأمر.

ژباړه: واپس لاړ شه ابو وليده خپلې ځمكې ته الله دې هغه ځمكه بدرنګه كړي چې ته او يا تا په شان خلك په كې نه وي او معاويه ته يې خط وليكه چې ستا په ده باندې هېڅ امر نه چلېږي او خلك هغه كارته راوګرځوه كوم چې عباده ويلي دي ځكه همدا دين دى.

(سنن ابن ماجه، باب: تعظيم حديث رسول الله ﷺ وتغليظ على من عارضه، رقم الحديث: ١٨).

٣ -د ابو هريرة ﵁ څخه روايت دى هغه فرمايي: بېشكه رسول الله ﷺ وفرمايل: إذا قال الرجل لأخيه يا كافر، فقد باء به أحدهما.

ژباړه: كله چې يو سړى خپل (مسلمان) ورور ته ووايي چې اى كافره نو پس يو په دې دواړو كي ككړ شو په دې باندې. (صحيح البخاري، باب: من كفر أخاه بغير تأويل فهو كما قال، رقم الحديث: ٦١٠٣).

## دوهمه عقيده:

زمونږ دا عقيده ده چې دوی معصوم نه دي داسې چې په هره مسأله کې مصيب وي او نه به خطاء کيږي، نه! بلکې بقول امام ذهبي رحمه الله چې: "وما من شرط العالم أنه لايخطئ ". يعني دا د عالم باره کې کوم شرط نه دی چې دا به نه خطاء کيږي (کمافی سير الأعلام: ۱۴ /۲۷۵) نو په دې اساس د دوی سره يوه مسأله کې د دليل په سبب مخالفت کول دا د دوی بې احترامي نه بلکې عين احترام دی او دا د دې هر امام څخه ثابته ده چې هغوی خپلې غاړې ازادې کړې چې کله هم زمونږ کوم قول د قرآن يا حديث څخه مخالف وو نو په هيڅ يې منل لازم نه دي.

### په دې دلائل دا دي:

۱ -صاحب الهداية په روضة العلماء کې نقل کړي چې ابو حنيفه ته وويل شو: إذا قلت قولا وكتاب الله يخالفه قال اتركوا قولي لكتاب الله.

ژباړه: که ته يو قول وکړې او د الله د کتاب مخالف وي نو بيا؟

نو هغه وفرمايل: زما قول د الله د کتاب په وجه پريږدئ، بيا ورته وويل شو: إذا قلت قولا وخبر رسول الله ﷺ يخالفه فقال أتركوا قولي بخبر رسول الله ﷺ.

ژباړه: او كه ته يو قول وكړې او د رسول الله ﷺ حديث يې مخالفت كولو، نو هغه ووېل: زما قول د رسول الله ﷺ حديث له كبله پرېږدئ،

فقيل له إذا كان قول الصحابي يخالفه فقال اتركوا قولي بقول الصحابي.

ژباړه: بيا ورته ووېل شو: كه ستا قول د صحابي د قول مخالف وي، نو ويې ويل: زما قول د صحابي د قول په وجه پرېږدئ.

القول المفيد فى أدلة الاجتهاد والتقليد: (صـ۵۴ مزيد وګورئ: صـ۵۵ صـ۵۶ صـ۵۷ صـ۵۸ صـ۵۹ صـ۶۰ صـ۶۱).

۲ -امام ابن حزم د تقليد رد كوي فرمايي: وقد ذكرنا أن مالكا وأبا حنيفة والشافعي لم يقلدوا ولا أجازوا لأحد أن يقلدهم ولا أن يقلد غيرهم وروي أن مالكا أفتى في مسألة في طلاق البتة أنها ثلاث فنظر إلى أشهب قد كتبها فقال امحها أنا كلما قلت قولا جعلتموه قرآنا ما يدريك لعلي سأرجع عنها غدا فأقول هي واحدة وهذا ابن القاسم لا يرى بيع كتب الرأي لأنه لا يدري أحق فيها أم باطل ويرى جواز بيع المصاحف وكتب الحديث لأنها حق وقال مالك عند موته وددت أني ضربت بكل مسألة تكلمت فيها برأيي سوطا على أنه لا صبر لي على السياط وذكر الشافعي حديثا عن النبي ﷺ فقال له بعض جلسائه يا أبا عبد الله أنأخذ به فقال له يا هذا أرأيت علي زنارا أرأيتني خارجا من كنيسة حتى تقول لي في حديث النبي ﷺ أنأخذ بهذا ولم يزل رحمه الله في جميع كتبه ينهى عن تقليده وتقليد غيره.

